د راشده خلیفه ګانو

# اسلامي تاریخ

لیکوال:

استاد رضوان الله لودین

**کتاب پېژندنه**

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | اسلامي تاریخ |
| لیکوال | : | استاد رضوان الله لودین |
| خپرندوی | : | مسلم خپرندویه ټولنه - جلال آباد |
| کمپوز | : | رحمن الله بهیر |
| چاپ کال | : | ۱۳۹۲ |
| چاپ شمېر | : | ۱۰۰۰ (یو زر) |
| چاپ وار | : | څلورم |
| خپروونو لړ | : | ۹۷ |




د ترلاسه کېدو ځایونه

**مسلم کتاب پلورنځی**

اسحاقزی مارکېټ، لاندیني پوړ، جلال آباد ښار، افغانستان

اړیکشمېرې: ۰۷۰۷۷۵۴۰۳۱ - ۰۷۰۶۲۶۲۴۶۳ - ۰۷۷۶۰۰۶۴۱۶

برېښنا لیک: muslim-pub@yahoo.com

**جواد کتاب پلورنځی**، کونړ

**صداقت کتاب پلورنځی**، ارګ بازار کندهار ۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴

**مستقبل کتاب پلورنځی**، پته: کابل کوټه سنګي، د سیلو د څلورم او پنځم سرک تر منځ د شاداب ظفر بلاکونو ته مخامخ

**امام ابو حنیفه کتب خانه** خوست-۰۷۷۹۵۴۶۴۸۸

**دعوت کتب خانه**، خوست بازار

## لړ لیک

| موضوع | مخ |
| --- | --- |

## لړلیک

موضوع | مخ

## لړلیک

موضوع | مخ

# لړ لیک

| موضوع | مخ |
|---|---|

## سریزه

الحمد لله رب العلمين الرحمن الرحيم والصلوة و السلام على سيد المرسلين و خاتم النبيين محمد و اله وصحبه اجمعين ومن تبعهم باحسان الى يوم الدين

و بعد:

له کوم وخت څخه چې د ځمکې پر مخ بشر خپل ژوند پیل کړی د هغه وخت څخه انسانانو اجتماعي او ټولنيز ژوند غوره کړی او د خپل مرفه او ګټور ژوند او ژواک په خاطر یې د ځانونو لپاره دینونه غوره او ټاکلي دي.

داسماني دينونو پيروان په هر وخت او زمانه کې دې ته اړ شوې دي، چې د باطلو دينونو په مقابل کې سرښندنه وکړي او د ځمکې پر مخ په ځانګړې توګه د يو الله جل جلاله اسماني دين حاکم وګرځوي، ترڅو ټوله بشري نړۍ د جهالت ناپوهۍ بې عقلۍ او بې عدالتۍ څخه خلاص کړي او هغه د دې لپاره چې د الله جل جلاله پرځمکه د عدل او انصاف قانون يوازې د بشريت تګ لاره شي او نور باطل دينونه لغوه او نابود شي او انساني پرګنه د فرعونيت د ظلم او وحشت څخه په امن او د سعادت او نیکبختۍ په لور روانه شي.

د تاريخ په هره مرحله کې الله جل جلاله د خپلو سپېڅلو بنده ګانو د امتحان او ابتلاء لپاره يو شمېر بشر دښمنه ستر طاقتونه رامنځ ته کړي دي، چې د هغه سترو طاقتونو څخه د روميانو او فارسيانو لوی امپراطورۍ د مثال په توګه ښودلی شو، چې همدا ستر او ظالم طاقتونه رامنځته کړي دي، چې همدا ستر او ظالم طاقتونه د هغه وخت د مسلمانانو مجاهدينو او جهادي ځواک پواسطه محوه او تباه شو او پاتې کسان يې د اسلام د مبين دين پېروان شوې دي.

په نني عصر کې اوس هم د دوی په څېر نور اسلام دښمنه قوتونه یو ځلې
بیا د خپلو اسلافو، کرکجنو او متفرقه عقایدو د راژوندي کولو او یا د
هغوی د یاد تازه کولو په منظور په مسلمانانو باندې د شر غوبل
جوړولو مظالمو او انساني ضد عملونو د ترسره کولو او هم د دوی د
سپېڅلو عقایدو او اسلامي مقدسو کړنلارو پرضد ستونزې او خنډونه
رامنځ ته کړي دي او د لوی الله جل جلاله بنده ګان چې اساساً ازاد او
خپلواک پیدا شوي د خپلو شومو او ناولو غرضونو په خاطر بنده ګي او
غلام په څېر استعمال کړي دي؛ لکه: څرنګه چې د اسلام په لومړیو کې
زموږ مجاهد پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه مبارک
رښتیني او محبوب یاران د راشده خلیفه ګانو او د نورو ډېرو اسلامي
مئینو اصحابو کرامو د خپل زوروزذات د اوامرو او احکامو په تطبیق
کې یې په سر او مال جهاد کړی او په دې لاره کې یې نه ستړي کېدونکي
زحمتونه ګاللي دي.
د دغې کتاب بله وجه دا ده، چې پښتو ژبه کې او خصوصاً د امام اعظم
رحمه الله، نعمان بن ثابت د مذهب مطابق چې د اسلامي تاریخ یو
ځلانده او روڼ باب تشکیلوي، له همدې کبله مې ضروري وګڼله چې د
پښتو د ژبې په روانو او ساده الفاظو کې د اسلامي تاریخ د دغه مړنیو
په کارنامو، شاهکاریو او هم د هغوی په خلافت او سیرت باندې رڼا
واچوم، سره له دې چې زما استعداد او علمي سطحه د دې جوګه نه ده
اوله بله طرفه د پښتو په ژبه کې د داسې تاریخي اثارو موندل هم اسانه
کار نه دی خو ما د خپل هاند او هڅې په مرسته او خاصتاً د ډېرو
محترمو علماوو د لارښوونې په برکت ځینې کتابونه ترلاسه کړل او له
هغې څخه مې د دې کتاب په لیکلو کې ګټه واخیسته.
د خپل لوی الله جل جلاله څخه هیله مند یم، چې زما دغه وړوکی کتاب (

د اسلام تاريخ، د مئينانو تنده ماته کړي او د لوستلو څخه وروسته وربانـدې عمـل وکـړي او د راشـده خليفـه ګـانو تېـرو سربښـندونکو مجاهدينو په پل باندې قدم کېږدي لکه څرنګه چې ابوبکر صديق رضي الله عنه خپلو قومندانانو تـه هـدايت ورکـوي، چې کلـه تاسې کـومې منطقې تـه ورداخلېږي خيانـت، غـداري او بې وفـايي ونـه کـړئ هيڅ نامشروع او ناروا عمل ته اراده مه کوئ، غوږونه، پوزې د دښمن مه قطع کوئ، کوچنيان، زاړه او ښځې ونه وژنئ له هغو خلکو سره جګړه کـوئ، چې د ستاسو په مقابل کې جګړې ته حاضر وي، بې لـه ضرورت څخه د مېوه دارو ونو شاخونه مه قطعه کوئ او حيوانات بې لـه ضرورته ونه وژنئ په هغو راهبانو چې دنيا يې پريښې وي او پـه صومعه کې د لـوی څښتن تعالی عبادت تـه يې ځانونه وقف کړي وي ونـه لړېږي هر ډول خواړه چې درته راشي د الله جل جلاله نوم ياد کړئ بيا يې وخورئ او نـور هر رواڅېزونه چې د جنګ په جريان کې واقع کېږي درته اجازت دی.

دا دی اوس بيا هم هماغه د اسلام د ابتدايي مرحلې وخت رارسېدلی دی، ځکه چې موږ هجرت کړی دی او اوس جهاد کوو، پخوانيو صحابوو کرامو هم هجرت کړی وو او هم يې جهاد کاوه، کله چې هغه قومندانانو د خپلو اميرانو د هدايت پېروي کوله. نو هماغه وو چې هغه لوی طاقتونه ((روميان او فارسيان)) محوه او نابود کړل او زياتره يې په اسلام باندې مشرف شول. دا کتاب دځينو ديني علماوو په مرسته او هم د ځينـو نـورو باتجربه استادانو پـه همکاری مـې وليکـه، د تحقيـق او تـدقيق څخه وروسته چاپ ته وسپارل شو، که بيا هم په کوم ځای کې سهوه يـا غلطې رامنځته شوې وي، نو ګران لوستونکي کـه د اعتـراض پـه ځای اصلاح وکړي، نو دا به د اسلامي امت سره همکاري وي.

تحقيق کوونکي: د الهجرت والجهاد د عالي مدرسې مدير الحاج شيخ

القران مولوي صاحب شمس الرحمن کاموي .

۲: د الهجرت والجهاد د مدرسې مدير الحاج شيخ الحديث مولوی صاحب عبدالشافي « مذيني »

۳: د امام اعظم نعمان بن ثابت رحمه الله د مدرسې بر حال مدير مولوي صاحب عبدالحليم .

د اسلامي انقلاب د بریالیتوب په هیله.

والسلام

**رضوان الله (لودين)**

۱۳٦٦/۸/۲۰

## لومړی فصل

## خلافت

خلافت څه ته وايي؟ د خلافت لغوي معنا د لغت په کتابونو کې په مختلفو معناګانو راغلي ده، خو د زیاتو معناګانو په عوض یوازې دا څو لازمې وګڼل شوې، چې عبارت د امامت، نیابت، امارت او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم جانشین خو په اصل کې د خلافت او امانت ترمنځ توپیر شته.

ځکه خلیفه د الله جل جلاله د احکامو د تبلیغ ترویج او تطبیق کولو قدرت او صلاحیت لري، خوامام یوائې د احکامو او اصولو تبلیغ او ترویج قدرت او صلاحیت لري او تطبیق کولو څخه یې عاجز دی، ځکه چې د دې په لاس کې کوم نظامي قدرت او صلاحیت نشته.

د خلافت تعریف: هغه اسلامي نظام ته ویل کیږي، چې په هغه کې ټولې چارې او قوانین د اسلام په اصولواو قوانینو متکي وي، دنیاوې شان او شوکت ونه لري او د پیغمبرﷺ جانشین وي، یا په بل عبارت خلافت (دیني سیاست) عبارت له هغه حکومت څخه دی، چې په هغه کې خلک د اسلامي نظریي او شرعي قوانینو پابند اوسي او مقصد ترې ابوبکر صدیق رضي الله عنه د صداقت، امانت، زکاوت او د نرم زړه خاوند باله، عمر رضي الله عنه په شکل کې عدل، انصاف، عزم، شدت او د زړه محکم والی مشاهده کاوه. د عثمان رضي الله عنه په شکل کې حلم، تواضع، پرهیزګاري او سخاوت مشاهده کاوه.

د علي رضي الله عنه په شکل کې شجاعت، علم، زهد او د ارادي ثبات لیدل کیده.

کله چې د بدر په غزا کې یو شمېر کسان بندیان شول، نبي کریم صلی

الله علیه وسلم د ابوبکر صدیق رضي الله عنه سره مشوره وکړه ابوبکر صدیق رضي الله عنه ورته د عفوې مشوره ورکړه بیا عمر ﷜ د هغوی په هکله د قتل او انتقام اخیستلو مشوره ورکړه، وروسته له دې نبي کریم ﷺ وفرمایل: بېشکه الله ﷻ د ځینو کسانو زړونه د شیدو څخه هم نرم پیدا کړي او د ځینو کسانو زړونه یې د تیږو څخه هم کلک پیدا کړې دي.

بیا یې وفرمایل ای ابوبکره! ته د ابراهیم ؑ په مثال یې چې ویل به یې:

﴿فَمَنْ تَبِعَنِيْ فَاِنَّهٗ مِنِّيْ ۚ وَ مَنْ عَصَانِيْ فَاِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾

هر څوک چې زما پیروي کوي، هغه زما د ډلې څخه دی او هرڅوک چې زما څخه نافرماني کوي بېشکه ای الله ﷻ ته بښوونکی او مهربان ذات یې.

بیا یې وویل: ای ابوبکره! ته په مثال د عیسی بن مریم ؑ د دنیا او اخرت د ژوند ګټې او مصالح وي، ځکه چې په اسلام کې د دنیا د ټولو حالاتو قدر او قیمت د اخرت د ګټو په اعتبار سره وي.

**د خلافت تعریف:** د اسلام سیاسي علماوو په مختلفو ډولونو سره تعریف کړی دی، خو دلته هغه تعریفونه ذکر شوي دي، چې اکثرو علماوو پرې اتفاق کړی دی.

## د راشده خلیفه ګانو دوره

کومې دورې چې د محمد ﷺ له وفات څخه وروسته دیرش (۳۰) کاله دوام وکړ، یعنې د ۱۱هـ نه ۴۰ کالو پورې دا دوره په اسلامي تاریخ کې د راشده خلیفه ګانو د دورې په نوم شهرت لري. دغه دوره له پیل څخه ترپایه پورې د ډېرو تکلیفونو، کړاوونو او حوادثو څخه ډکه ده، ځکه په دغه دوره کې د مرتدینو د بغاوت او غیر اسلامي هېوادو ته د اسلام د دین خپرول او داسې نور زیات مسایل موجود و، چې د دوو لویو مقتدرو دولتونو (فارس او روم) مغلوبول او هغوی د اسلام د دین تابع کولو ته یوه ضروري مسله ده. همدارنګه د مسلمانانو صفونو ته د بېلو بېلو عقایدو او مذاهبو داخلېدل او د مسلمانانو په صفونو کې د اختلاف اچولو دسیسې او د درې خلیفه ګانو وژل او دباغیانو دظلم او د عداوت په واسطه د زرهاوو مسلمانانو په شهادت رسول دا پورتني ټول واقعات دخلافت د زمانې د ډېرو کړاوونو او مشکلاتو ښکارندوی دي.

خو سره له دې ټولو مشکلاتو بیا هم رښتیني مسلمانانو د اسلامي حکومت غوره کامله بنسټ کېښود او په دې دوره کې د قران کریم د قرائت اختلاف محوه او د نومورې سپېڅلي کتاب ترتیب او تدوین هم وشو او د ټولو مسلمانانو سیاسي او اجتماعي ستونزې حل شوې او د وورګلوۍ ژوند تضمین شو.

لنډه دا چې راشده خلیفه ګانو په دوره کې د عدل، ازادۍ او د امنیت په اصولو ولاړ حکومت موجود وو، د راشده خلیفه ګانو دوره په زور، قوت او قهر سره نه بلکې یو قانوني او دشریعت په اصولو ولاړ حکومت و.

مسلمانان په دغه اسلامي دوره کې د قدرت، ثروت او توانمندۍ داسې اخري حد ته رسیدلي وو، چې د بل هیڅ دولت په وخت کې نه پخوا او نه تراوسه پورې رسیدلي دي.

## د راشده خلیفه ګانو په هکله د محمدﷺ وینا

له محمد ﷺ څخه وروسته د خلافت مقام څلورو ستروا صحابو رضي الله عنهم لاس ته ورغلی دی، چې څلور تنه په لاندې ډول تاسو ته در پېژندل کېږي.

۱. ابوبکر صدیق رضي الله عنه لومړی خلیفه وو، چې د ده د خلافت موده دوه کاله او درې میاشتې وه، چې په یوولسم هـ کال پیل او په دیارلسم هـ کال پای ته ورسیده (۱۱هـ نه تر۱۳هـ) کاله پورې.

۲. عمر بن خطاب رضي الله عنه دویم خلیفه و، چې د خلافت موده یې لس کاله وه، (۱۳نه تر۲۳ هـ) کاله پورې

۳. عثمان بن عفان رضي الله عنه دریيم خلیفه و، چې د خلافت موده دولس کاله وه (۲۳هـ نه تر۳۵هـ) کاله پورې.

۴. علي بن ابي طالب رضي الله عنه څلورم خلیفه و، چې د خلافت موده پنځه کاله وه. (۳۵هـ نه تر۴۰هـ) کاله پورې.

پورتني د اسلام ستر خلیفه ګان په مکه مکرمه کې زېږیدلي او په لومړۍ مرحله کې په اسلام مشرف شوي دي او د محمد ﷺ د ژوند دورې یاران دي هغه ظلمونه او تکلیفونه چې د کفارو لخوا حضرت محمد ﷺ او مسلمانانو ته رسیدلي دي، دوی هم له دې کړاوونو څخه بې برخې نه وو. هغه جهاد چې محمد ﷺ د اسلام او د مسلمانانو د ساتنې په غرض کاوه، دوی په کې خپل ټول توان او قدرت، مال او شتمنۍ سره د اعلاء کلمة الله په خاطر ستره برخه اخیستې وه او د نړۍ په ټولو مسلمانانو باندې د دوی قدر او احترام واجب دی، او د راشده خلیفه ګانو په سیرت کارنامو، نیکو اعمالو او د جهاد په قدرت باید وپوهېږي او د دوی د بد ګویي څخه ځان وژغوري او باید په ژبه د دوی ثنا او توصیف وکړي چې

الله جل جلاله د داسې کسانو په باره کې فرمايلي دي: ﴿كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾

ژباړه: اوس په نړۍ کښې هغه غوره ډله تاسې ياست چې د انسانانو د لارښودنې او اصلاح له پاره مينځ ته راوړل شوېده

﴿وَ السّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَ الْاَنْصَارِ وَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ ۙ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَ رَضُوْا عَنْهُ﴾

ژباړه : هغه مهاجرين او انصار چې هغوی تر ټولو د مخه دايمان بلنې ته په لبيک ويلو کښې وړاندې شول، دغه راز هغه کسان چې وروسته له نيکۍ او ريښتينولۍ سره په هغو پسې راغلل، الله جل جلاله هغو نه خوښ او هغوی له الله جل جلاله نه خوښ شول،

محمد ﷺ د دوی په باره کې فرمايي: زما صحابه د ستورو په څېر دي که تاسې د هر يو پسې اقتداء وکړئ د هدايت لاره به پيدا کړئ، هيڅ يو صحابي د محمد ﷺ د خپلوۍ يا د قرابت په اړه د نورو اصحابو په مقابل کې کوم خاص امتياز نه درلود. هر يو يې د خپل لياقت، پوهې او تقوا په نظر پېژانده هيڅ کوم کار د صحابو د محمد ﷺ څخه پټ نه وو، محمد ﷺ په ټولو امورو او کارونو کې که داخلي وو او که خارجي د دوی سره سلا او مصلحت کاوه، نبي کريم ﷺ ابوبکر رضي الله عنه زکاوت او د نرم د زړه خاوند باله.

د عمر رضي الله عنه په شکل کې يې عدل، انصاف، عزم، شدت او د زړه محکموالی مشاهده کاوه.

د عمر رضي الله عنه په شکل کې حلم، تواضع، پرهېزګاري او سخاوت مشاهده کاوه.

دعلي رضي الله عنه په بڼه کې شجاعت، علم، زهد او د ارادي ثبات ليدل کېده.

کله چې د بدر په غزا کې يو شمېر کسان بنديان شول، نبي کريمﷺ د ابوبکر صديق رضي الله عنه سره مشوره وکړه ابوبکر صديقرضي الله عنه د بنديانو په هکله ورته د عفوې مشوره ورکړه.

عمررضي الله عنه د بنديانو په هکله د قتل مشوره ورکړه بيا رسول اللهﷺ وفرمايل: چې بېشکه الله جل جلاله د ځينو کسانو زړونه له شيدو څخه هم نرم پيدا کړي او د ځينو خلکو زړونه يې د تيږې څخه هم کلک پيدا کړي دي.

بيا يې وفرمايل: اى ابوبکره! ته په مثال د ابراهيمعليه السلام يې چې ويل به يې:

﴿فَمَنْ تَبِعَنِيْ فَاِنَّهٗ مِنِّيْ ۚ وَ مَنْ عَصَانِيْ فَاِنَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾

ژباړه : چې څوک زما په کړنلاره لاړ هغه زما دى او څوک چې زما پر خلاف کړنلاره غوره کړي؛ نو په يقيني ډول ته بښونکى مهربان يې،

بيا يې وفرمايل اى ابوبکره! ته په مثال د عيسى بن مريم يې چې ويل به يې:

﴿اِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَاِنَّهُمْ عِبَادُكَ ۚ وَ اِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَاِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾

ژباړه : اوس که ته هغو ته سزا ورکړې نو هغوې ستا بندګان دي او که بښنه ورته وکړې نو ته بر لاس او د حکمت خاوند يې ،

محمدﷺ د عمررضي الله عنه په هکله فرمايل: ته بېشکه په مثال د موسى عليه السلام يې چې ويل به يې: ﴿رَبَّنَا اطْمِسْ عَلٰۤى اَمْوَالِهِمْ وَ اشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْا حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ﴿۸۸﴾﴾

ژباړه : اى ربه، د هغو مالونه تا لا والا کړه او د هغو پر زړونو مهر ووهه چې ايمان رانه وړي تر څو پورې يې چې دردناک عذاب نه وي کتلى'

څرنګه چې عمر رضي الله عنه دارنګه نظر درلود، نو الله جل جلاله د دې د دغه رایې د تائید لپاره دا ایت نازل کړ: ﴿مَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗٓ اَسْرٰى حَتّٰى يُثْخِنَ فِي الْاَرْضِ ۭ تُرِيْدُوْنَ عَرَضَ الدُّنْيَا ڰ وَاللّٰهُ يُرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ۭ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ﴾

ژباړه: له هيڅ پيغمبر سره دانه ښايي چې له هغه سره بنديان وي تر څو پورې چې هغه په ځمکه کښې دښمنان په ښه شان ونه ټکوي، تاسې د دنيا ګټه غواړئ، په داسې حال کښې چې د الله تر نظر لاندې اخرت دی، او الله برلاسی او حکمت والا دی.

د پورتني ايت مفهوم دا شو چې ای نبي ﷺ تا ته لازم نه دي.
چې ته زندانيان عفوه کړې مګر ترڅو چې وينې توی کړئ يا هغوی ووژنئ مګر په هغه وخت کې چې د اسلام دعوت استقرار پيدا کړي او دښمنان نابود شي ځکه چې تر اوسه پورې د اسلام د ښمنان لا قوي د ي او ستا دعوت لا تر اوسه پورې د رشد مرحلې ته نه دی رسيدلی.

## د يو واحد خليفه عدم تعين

لازمه وه، چې محمد ﷺ بايد په خپل ژوند کې د مسلمانانو د خلافت لپاره خليفه ټاکلی و، ترڅو د محمد ﷺ له وفات څخه وروسته نيابتاً داخلي او خارجي چارې، امنيتي او حربي وظيفې او د لمانځه امامت او د شرعي احکامو تطبيق او داسې نور امور او کارونه يې انجام کړي وای، څرنګه چې دنياوي او اخروي سياست په اسلام کې وضع شوی دی او هغه احکام چې په هغه کې يې د مسلمانانو د دنيا او اخرت مسووليت ذکر شوی دی له هغوی څخه يوهم د خليفه انتخابول وو، څرنګه چې الله جل جلاله ادم عليه السلام په يوه زمانه کې د ځمکې پرمخ باندې خليفه وګرځوه او پر هغه

څه چې الله جل جلاله حکم کړی عمل وکړي او هم دا چې په قرانکريم کې نبي کريم ﷺ ته څرګند ډول د يو واحد شخص په باره کې حکم نه وو نازل شوی، بلکې خلافت د مسلمانانو په اختيارکې دی، چې هرڅوک د رضايت مورد او هغه متقي او کامل صلاحيت ولري، وتاکې که چېرته محمد ﷺ په خپل ژوند کې خليفه ټاکلی وای بيا به د نورو قومونو لپاره د وراثت په طرز ثابت وکيل و، همدارنګه محمد ﷺ د ډېر تحقيق په وجه د خلافت په هکله په يوه خطبه کې وفرمايل: چې ای مسلمانانو! زه تاسو ته وصيت کوم، که چېرته ستاسې خليفه يو حبشي غلام هم وي، نو تاسې د الله جل جلاله د ويرې او د هغه د تقوا په خاطر د امير اطاعت وکړئ، ځکه کله چې انسان ژوندی وي، ډېر اختلافات ګوري، نو تاسې زما دنبي کريم ﷺ ) د راشده خلفاوو طريقه او لاره غوره کړئ، د بدعت او ناروا کارونو څخه ځان وژغورئ، ځکه چې هر بدعت ګمراهي ده، په همدې خطبه کې ضمنايي هغه حوادثو او واقعاتو ته هم اشاره وکړه، چې وروسته يې له خپل ژوند څخه پيش بيني کړې و، اونوموړي واقعات يې په قلبي بصيرت سره درک کړي وو.

## دويم فصل

## د ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت دوره

## د يوولسم هـ- دیارلسم هـ کاله پورې

## ۶۲۳ميلادي نه تر ۶۳۴ ميلادي کاله پورې

ابوبکر صدیق رضي الله عنه د هغه اسلامي رغبت، مينې او غيرت له کبله چې د اسلام سره يې درلوده په ټولو اصحابو کرامو غوروالی لري، يعنې ابوبکر صديق رضي الله عنه لومړی سړی و، چې په اسلام مشرف شوی دی، کله چې محمد صلی الله علیه وسلم له مکې څخه مدينې ته هجرت وکړ، نو د لارې لومړنی ملګری او مرستيال يې ابوبکر وو، محمد صلی الله علیه وسلم د وفات د ناروغتيا په وخت کې د لمانځه د اداء کولو لپاره هم نائب ابوبکر صديق رضي الله عنه تعين کړ، کله چې د مسلمانانو کاروان چې د حج د مناسکو د اداء کولو سرپرست يې هم ابوبکر صديق رضي الله عنه ټاکلی وو، د خلافت په دوره کې ټول مرتدين او دهريان تباه کړای شول کله چې د مسلمانانو په وحدت کې اختلاف رامنځ ته شو بيا د ده په واسطه اسلامي وحدت د دويم ځل لپاره ټينګ شو، مسلمانان يې د نورو بهرنيو فتوحاتو لپاره چمتو کړل او په جزيرة العرب کې يې جهاد پای ته ورساوه، لومړی سړی وچې قران يې د صحيح صحيفو څخه راجمعه کړ، د دې ويرې نه چې هسې نه چې په دغه کتاب کې د دښمنانو پواسطه کوم تحريف او يا اختلاف ايجاد شي.

محمد صلی الله علیه وسلم د ابوبکر صديق رضي الله عنه په باره کې فرمايلي دي: لوکنت متخذ خليلاً مِن العباد لا تخذت ابابكر خلِيلا.

که چېرته ما د الله جل جلاله په بنده ګانو کې دوست (خليل) نيولای نو ابوبکر به مې دوست نيولای وای.

**د ابوبکر صدیق رضي الله عنه زېږېدنه او نسب:**

ابوبکر صدیق رضي الله عنه په مکه کې د فیل له کال څخه دوه کاله وروسته یعنې له محمد ﷺ څخه دوه کاله کشر دی، د بت پالنې په محیط کې ځوان او د رخت د تجارت په شغل مشغول وو، په مکه کې د ټولو کسبونو او وظیفو څخه مهمه وظیفه ګڼل کېده او له دې لارې څخه یې ډېرې ګټې او فایدې لاس ته راوړې او ډېرې پیسې یې ټولې کړې دي، په خپل کسب او کار کې ډېر صادق او امین شخص و، چې د دغه صداقت او امانت دارۍ له کبله د قوم سرپرست او په خپل قوم کې د ډېر اوچت مقام خاوند وو، پلار یې ابوقحافه عثمان بن عامر بن مره له قبیلې څخه وو.

ابوبکر صدیق رضي الله عنه په اتم پښت کې د (مره سره) د محمد ﷺ د کورنۍ سره نږدې کېږي، د ابو بکر صدیق رضي الله عنه مور سلمی بنت صخر بن عامر او کنیه نوم یې ام الخیر وه، د ابوقحافه د کاکا لور وه، ابو بکر صدیق رضي الله عنه د پلار او مور لخوا د تیم قبیلې ته نسبت کېږي، چې د قریشو له قبیلو څخه یوه قبیله ده، د جهالت په زمانه کې مالیات، نقدي او جنسي محصولات د نومړې قبیلې پورې اړه درلوده او په قبیله کې امین او د اعتماد وړ شخص ابوبکر صدیق رضي الله عنه و، ترڅو د دغه خزانې څخه د کړاوونو په وخت کې ورڅخه ګټه واخلي.

د جهالت په زمانه کې کنیه نوم یې عبد الکعبه و، د اسلام له راوړلو څخه وروسته نبي کریم ﷺ د عبدالکعبه په ځای د عبدالله نوم غوره کړ د مور لخوا ورته د عتیق لقب ورکړای شوی وو، ځکه چې پخوا د ابوبکر رضي الله عنه د پلار اولاد نه پاتې کېده، نو پلار یې (ابوقحافه) کعبة الله ته ولاړ و د الله جل جلاله په دربار کې یې د ده عمر د ډېروالي دعا وکړه، چې تر یو څه وخته پورې له مرګ څخه خلاصی ومومي، په مکه کې لومړی سړی ابوبکر صدیق رضي الله عنه وو چې د محمد ﷺ نبوت یې بې له کوم ځنډ څخه

تصديق او تائيد کړ، چې په همدې سبب يې د صديق لقب وګاټه.
هر قول او عمل به چې د محمد ﷺ څخه صادرېده نو بې له کوم شک او تردد څخه به يې تصديق کاوه، خصوصاً د معراج موضوع چې قوم يې د دې خبرې تکذيب وکړ او ابوبکرصديق تصديق وکړ او تردې چې ضعيف الايمان مسلمانان مرتد شول او تعجب يې کاوه، چې څرنګه د يوې مياشتې د مزل فاصله په يوه شپه کې طی شي.

## د ابو بکر صديق رضي الله عنه اولاده او کورنۍ

ابوبکر صديق رضي الله عنه د اسلام له بلنې څخه مخکې دوه وادونه کړي وو.
لومړۍ ميرمن يې قتيله بنت عزا چې له ده څخه دوه اولاده زېږدلي وو، چې د يو نوم عبدالله او د بل نوم اسماء وه، چې له دې څخه مخکې د زبير بن عوام ميرمن وه.
دويمه ميرمن يې : ام روښان بنت عامر بن عويمر چې دې هم دوه اولاده درلوده، چې د زوی نوم يې عبدالرحمن او د لور نوم يې عايشه رضي الله عنها وه، چې د ډېر فهم،زکاوت او جمال خاونده وه او بيا دنبي کريم ﷺ د پاکو بيبيانو څخه وه، د مدينې له هجرت څخه يې وروسته دوه نور ودونه هم کړي دي.
درېيمه ميرمن يې: حبيبه بنت خارجه وه چې د ابوبکر صديق رضي الله عنه له وفات څخه يې وروسته ام کلثوم وزېږده.
څلورم ميرمن يې: اسماء بنت عميس وه چې دا پخوا د جعفر طيار بن ابي طالب ميرمن وه، چې زوی يې د محمد بن ابوبکر رضي الله عنه په نامه وزېږيده.

**د ابوبکر صديق رضي الله عنه خصوصيت او اوصاف:**

ام المؤمنين بې بې عايشه رضي الله عنها د خپل پلار ابوبکر صديق رضي الله عنه اوصاف

دارنګه ستايي چې د سپين رنګ خفيف او لطيف جسم خاوند وو په رخسار (تندي) کې يې غوښه کمه او همېشه يې زياته خوله (( عرق )) کوله ژورې سترګې او جګې وريځې درلودې او مبارکه ږېره به يې همېشه په نکريزو رنګ کوله، په اخبارونو کې متفق روايت دی، چې ابوبکر ﷺ د غوره اخلاقو، نرم طبيعت، تېز فکری او ذکي انسان وو، نفسي خواهشاتو پر ده غلبه نه وه کړې، له خپل قوم سره يې په بدو کارونو بدو عاداتو کې شرکت نه دی کړی، د شرابو څښل يې له اسلام څخه مخکې پرځان باندې حرام کړي وو، د هغې زمانې په علومو کې نسبت نورو ته ډېر شهرت درلوده د معاشرې په جوړولو او په نيکو خبرو کې هېڅ مثال نه درلوده.

**له نبي کريمﷺ سره د ابوبکر صديقﷺ مينه:**

پخوا له بعثت څخه د محمد ﷺ او د ابوبکر صديقﷺ په منځ کې د ورولۍ فضا قايمه وه، د دغه پېژندګلوۍ او حسن اعتماد په لاندې ډول دی: د دواړو د کسب او تجارت يووالی د دواړو همزولي، دواړه د نيکو اخلاقو خاوندان، د دواړو د حق طرفداران او په خپل نفس باندې د حاکميت درلودل، د دوی دانډيوالۍ او يووالي ښکارندوی دی.

د ابوبکر صديق ﷺ دا غوره عادات د دې موجب شول، د محمد ﷺ له دعوت سره په فوري ډول ايمان راوړ او د محمد ﷺ په دعوت د نبوت تصديق وکړ، بلکې د اسلام په قبلېدو يې اکتفا ونه کړه، بلکې په فوري ډول يې د اسلام ترغيب او دعوت سلسله يې جارې وساتله او په خپل قوم کې بې له کومې وېرې د اسلام په راوړلو اظهار وکړه له ده سره هېڅ دا وېره نه وه، چې مشرک قوم به د ده تجارت او يا دده وجود ته کوم زيان ورسوي، يوه ورځ خپل قوم ده ته داسې ځانې زجر ورساوه، چې دی زخمې او بې هوشه شو اوپر ځمکه باندې وغورځېده او بيا د بې هوشۍ

په حالت کې کور ته راوستل شو، د دې ټولو مشکلاتو او تکلیفونو سره سره بیا هم د اسلام له دعوت څخه لاس وا نه خیست او خپل د تجارت ملګرې یې اسلام ته دعوت کړل چې بیا د ابوبکر صدیقرضي الله عنه په واسطه عثمان بن عفانرضي الله عنه ، عبدالرحمن بن عوفرضي الله عنه ،طلحه بن عبداللهرضي الله عنه ، سعد بن ابي وقاصرضي الله عنه او زبیر بن عوامرضي الله عنه په اسلام مشرف شول د دغه پورته کسانو د اسلام په راوړلو سره د ابوبکر صدیقرضي الله عنه مقام نور هم اصحابو کې لوړ شو، ابوبکر صدیقرضي الله عنه له اسلام راوړلو څخه وروسته خپله مشوره او مصلحت د محمد صلی الله علیه وسلم په سفر او حضر کې د همېش لپاره جارې ساتلي وو او هیڅ وخت لپاره ورڅخه نه دی جلا شوی، حضرت ابوبکر صدیقرضي الله عنه د محمد صلی الله علیه وسلم سره په ټولو غزاګانو کې ګډون کړی دی. او د هیڅ مشورې او مصلحت مخالفت یې نه دی کړی، څه وخت چې ابوبکرصدیقرضي الله عنه په اسلام مشرف شو څلوېښت زره(۴۰۰۰۰) درهمه یې درلودل او ټولې روپۍ یې د الله جل جلاله او رسول صلی الله علیه وسلم په خدمت او د اسلام د خپرېدو لپاره مصرف کړي دي، چې د دې پیسو په جمله کې اوه (۷) غلامان چې د کفارو د ظلم او ستم څخه په تنګ راغلي وو په بیه اخیستي دي، چې عبارت له بلالرضي الله عنه ، عامر بن فهیره، نهیده بنت نهیده، زنیره ام عبیس یوه وینزه، د بني مومل رضي الله عنهم و اماننا علی حبهم

د عمر رضي الله عنه وینا ده، چې وایي یوه ورځ محمد صلی الله علیه وسلم د یو ضرورت په خاطر ځینو مالونو په باره کې دستور صادر کړ په دغه ورځو کې له ما سره ډېر زیات مال موجود و، ما هغه مال دوه برخې کړ، یوه برخه مال مې کور کې پرېښود او بله برخه مال مې د محمد صلی الله علیه وسلم په حضور کې حاضر کړ.

محمد صلی الله علیه وسلم له ما څخه غوښتنه وکړه، چې په کور کې دې د اهل و عیال لپاره څه پرېښودل ما عرض وکړو چې ای رسول الله! نیمایي مال مې په کور کې د اهل وعیال لپاره پرېښوده او نیمایي مال مې ستاسې په

حضور کې حاضر کړ، په دغه وخت کې ابوبکر صدیقؓ مال یو څه اندازه کم وو. بیا محمد ﷺ د ابوبکر صدیقؓ څخه سوال وکړ ابوبکرصدیقؓ وفرمایل په کور کې مې الله جل جلاله او د هغه رسول الله ﷺ نوم پرېښود، یانې مطلب دا چې ټول مال مې دلته راوړی د کور لپاره مې څه نه دي پرېښې عمرؓ وايي چې ما یقین وکړ چې زه هېڅکله له ابوبکر صدیقؓ څخه امتحان نشم ګټلی، محمد ﷺ د ابوبکر صدیقؓ دفضلیت او برکت په اړه فرمایلي دي:

ما دعوت احدا الی الاسلام الا وکانت فیه کبوة غیر ابوبکرؓ.

ژباړه: هرڅوک مې چې د اسلام خواته دعوت کړي دي هغه د اسلام د منلو په وخت کې تامل کړی دی، مګر غیر د ابوبکرؓ څخه ابوبکر صدیق ؓ د محمد ﷺ ډېر ګران دوست وو، ابوبکر صدیقؓ د محمد ﷺ یو لوی مشاور، د محمد ﷺ محافظ او ساتونکی او د اسرارو مخفي وو.

همدارنګه محمد ﷺ فرمایلي دي: زه هېڅ یو په خپل مجلس کې له ابوبکر صدیقؓ غوره نه پېژنم، که چېرته ما په بنده ګانو کې دوست (خلیل) نیولای البته ابوبکر صدیقؓ به مې انتخاب کړای وای، څه وخت چې محمد ﷺ له مکې څخه مدینې (یثرب) ته هجرت کاوه، د ابوبکر صدیقؓ د محمد ﷺ د لارې ملګری او کورنۍ یې د محمد ﷺ په حفاظت او ساتلو کې پوره قرباني ورکړې ده، څه وخت چې کفارو د محمد ﷺ د شهادت په منظور هلې ځلې کولې، ابوبکر صدیقؓ د محمد ﷺ د ژوند او سلامتۍ په باره کې تر داسې اندازې پورې حریص وو، چې د ټول مال او عیال په توان سره یې د هغه ساتنه او حفاظت کاوه.

الله جل جلاله د هجرت واقعه داسې بیانوي: ﴿ اِلَّا تَنْصُرُوْهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللّٰهُ اِذْ

اَخْرَجَهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ثَانِيَ اثْنَيْنِ اِذْ هُمَا فِي الْغَارِ اِذْ يَقُوْلُ لِصَاحِبِهٖ لَا تَحْزَنْ اِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا

ژباړه : که تاسې د پیغمبر (ص) مرسته ونکړه نو هیڅ پروا نشته ،الله د هغه مرسته په هغه وخت کښې کړېده چې کله کافرانو هغه ويستلی ؤ چې کله هغه صرف د دوه ؤ د دوهم ؤ، کله چې هغوی دواړه په سمڅه کښې وو کله چې هغه خپل ملګري ته وويل چې ' مه خفه کېږه، الله له مونږ سره دی

ابوبکر صدیقؓ د اسلام له منلو څخه د خپل کور په خوا کې لومړی جومات ۱ جوړ کړی وو، چې دغه جومات د اسلام په تاریخ کې لومړی جومات دی، چې په دغه جمات کې به دسهار لخوا بوبکر صدیقؓ کېناسته او د قران مجید تلاوت به یې کاوه،اوریدونکي کافر به د قران شریف د تلاوت په اورېدو ډېر زیات متاثره کېدل او کفارو به هره ورځ د ده مزاحمت کاوه،په پای کې ابوبکر صدیقؓ د محمد ﷺ په اجازت حبشي ته د هجرت کولو عزم وکړ، کله یې چې حرکت وکړ په لاره کې د ابن الدغنه کافر سره چې یو قریشي تاجر وو مخامخ او د هغه د زیات اسرار په وجه بېرته مکې مکرمې ته راوګرځېده او د قریشو مشرانو ته یې وویل: چې ایا تاسې غواړئ چې داسې یو شخصیت چې نه یې څه لیدلي او نه کوم کسب کوي او زمونږ د قبیلې یو ستر شخصیت هم دی له تاسې څخه جلا او مسافر شي، ما ورته امان ورکړ، هیڅوک ده ته مزاحمت او تکلیف نشي رسولای، په دغه وخت کې پرالله جل جلاله مئېن شخص ابو بکر صدیقؓ پورته شو او ویې ویل: چې زه نه غواړم چې د کافر په امن کې سکونت وکړم. زما لپاره د الله جل جلاله او د رسول ﷺ امن

---

۱ ازالة الخفا یه حواله صفحه ۷۵۳

کافي دی، وروسته له دې واقعې څخه د محمد ﷺ حضور ته حاضر شو او ټول جريان يې ورته بيان کړ، محمد ﷺ ورته وفرمايل: ای ابوبکره! تاسې چېرته مه ځئ، د هجرت اجازه ماته هم رارسېدلې ده، زما د لارې ملګرى نشته چې له ما سره لاړ شي، ابوبکرصديق رضي الله عنه د دويم ځل لپاره بيا د محمد ﷺ په ملګرتوب په مکه معظمه کې ژوند غوره کړ او د ټېر عمر په شان بيا د قران شريف په تلاوت او د اسلام په تبليغ مشغول شو.

**د ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت انتخاب:**

څه وخت چې محمد ﷺ د فاني نړۍ څخه داخرت لورته رحلت وکړ ټول صحابه رضي الله عنهم او اهل بيت د محمد ﷺ په دفن کولو او د نومورې ﷺ مبارک خښولو کې مصروف وو، په دې وخت کې يوه ډله انصار په سقيفه بني ساعده کې سره راټول شوې و او غوښتل يې چې د محمد ﷺ په ځای جانشين وټاکي، دوی په دې باور چې د خلافت لومړنی حق د مدينې د خلکو دی، ځکه دوی لومړی اسلام راوړی او جهاد يې کړی دی. په دې وخت کې سعد بن عبادة رضي الله عنه چې د ناروغۍ په حالت کې و د خزرج د قبيلې يو مشهور او مخکښ سړی و، نومورې په خپلو اوږو او په شاد بيعت کولو لپاره د بني ساعده محلې ته راوست په دغه وخت کې سعد د دغه خلکو رايه تائيد کړه او ويې ويل: ای د انصارو ډلې ! په تحقيق سره تاسې ديني او اسلامي فضليت لرئ، چې د عربو نورې قبيلې نه لري. محمد ﷺ د ديارلسو کالو په شاوخوا کې له خپل قوم سره تېر کړل، چې هغوی اسلام ته دعوت او له بتانو له عبادت څخه يې منعه کړي ولې ايمان يې رانه وړو، څو لږو کسانو ونشو کولای چې محمد ﷺ ته پناه ورکړي او اسلام ته عزت او غلبه ورکړي او د کفارو له ضررونو څخه ځانونه وساتي څه وخت چې الله جل جلاله د فضليت اراده په تاسې وکړه دغه بزرګي يې د ستاسې په طرف سوق کړه او په دې نعمت کې يې تاسې ته

ځانګړتيا درکړه او تاسې ته يې دا توفيق درکړ، چې محمد ﷺ او د هغه اصحابو رضي الله تعالى عنهم ته مو پناه ورکړه او هغوی مو وساتل پس دا حق ستاسې دی څه وخت چې انصارو د سعد بن عبادة خبرې واورېدې ويې ويل: موږ له منځ څخه تا د دې کار لپاره ټاکو مخکې له دې څخه چې څوک سعد ته بيعت ورکړي، په دې وخت کې يوتن د انصارو له ډلې څخه پاڅېده او يې ويل که چېرته مهاجرين (قريش) د ستاسې د دې نظر مخالفت وکړي په ځواب کې څه دليل لرئ په دې وخت کې دې ډلې د يو څه وخت لپاره سکوت اختيار کړ او سوچ يې وکړو بياله دوی څخه يو پورته شو او ويې ويل: موږ د مهاجرينو ځواب داسې وايو:

چې يو امير له تاسې او يو امير دې له موږ څخه وټاکل شي غير له دې خبرې څخه پرته نور په هېڅ رضايت نه کوو په دې وخت کې عمر رضي الله عنه له دې موضوع څخه خبر شو او په ډېره چالاکۍ د ابوبکر صديق رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه د بني ساعده سقيفې ته حاضر شول، کله چې دوی د انصارو سوال او ځواب واورېده او ابو عبيده بن جراح رضي الله عنه همدلته راورسېده، نو عبيده پورته شو او له انصاروپاملرنه يې د ځان خوا ته جلب کړه او ويې فرمايل: ای انصارو! تاسې لومړني خلک ياستئ، چې د مسلمانانو سره مو مرسته کړې دې او هغوی ته مو قوت ورکړی دی، ای انصارو نه بايد لومړی تغيير او تبديل کوونکي وګرځئ وروسته ابو عبيدة رضي الله عنه چې په ډېر حکمت سره يې خبرې وکړې بشير بن سعد ابن نعمان چې د خزرج د قبيلې يو تکړه، زړه ور اوغښتلی شخص وو دا رنګه وفرمايل: زما دې په الله جل جلاله قسم څرنګه چې په جهاد او نصرت د دين کې مخکې وم او د اسلام د قوت په خاطر د مشرکينو په مقابل کې په لومړني صف کې ولاړ ووم او زموږ مقصد د الله جل جلاله رضا او د نبي کريم ﷺ اطاعت و، زه د دې خدمت په مقابل کې له خلکو څخه هېڅ دنيوي اسباب او سامان نه

غواړم زما هدف یوازې د الله ﷻ رضا ده خبردار اوسئ. ای خلکو! چې محمد ﷺ د قریشو له قوم څخه و لومړنی حق د همدوی دی قسم په الله ﷻ زه هېڅکله د خلافت په باره کې اختلاف نه لرم او نه یې کوم په دې وخت کې ابوبکر صدیق رضي الله عنه دعمر رضي الله عنه او ابو عبیده رضي الله عنه په منځ کې ناست و څه وخت چې د بشیر بن سعد خبرې واورېدې، ودرید او د عمر رضي الله عنه او ابوعبیده رضي الله عنه لاسونه یې ونیول او انصارو ته یې وویل: له دغه دواړو څخه چې هر یو لازم بولئ بیعت ورته ورکړئ په دې وخت کې عمر رضي الله عنه ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته فرصت ورنه کړ او د ابوبکر صدیق رضي الله عنه لاس یې ونیو او په لوړ اواز سره یې وویل: ای ابوبکره! خپل لاس دې پورته کړه، ابوبکر صدیق رضي الله عنه لاس پورته کړ او عمر رضي الله عنه سمدستي خپل بیعت ورکړ او ویې ویل ایا رسول الله صلی الله علییه وسلم تا ته د مسلمانانو د امامت لپاره امر نه ووکړی؟

بس ای ابوبکره! ته د رسول الله خلیفه ﷺ یې، بیا ابو عبیده رضي الله عنه او وروسته بشیر بن سعد بیعت ورکړ، په دې وخت کې دمحمد ﷺ جنازه په کور کې وه او عباس رضي الله عنه، علي رضي الله عنه او داسې نور اهل بیت د محمد ﷺ ته په غسل ورکولو کې مصروف وو.

**لومړنۍ خطبه:**

وروسته له حمد او ثنا یې داسې وفرمایل: ای خلکو زه ستاسې د ورځینۍ چارو د سرته رسولو لپاره مشر وټاکل شوم، په داسې حال کې چې زه له تاسې څخه بهتر نه یم که چېرته ما ښه کار وکړ تاسې به زما اطاعت کوئ او که چېرې زه په غلطه لاره لاړم تاسې به ما په سمه لاره برابروئ. صداقت ، امانت دی او دروغ خیانت دی د ستاسې ضعیف زما په نزد قوي دی اوستاسي قوي زما په نزد ضعیف دی، هغه قوم چې د الله ﷻ په لاره کې جهاد ترک کړي بېشکه الله ﷻ هغه قوم ذلیله کوي

او د هر قوم په منځ کې چې فحشا خپره شي په تحقیق سره الله جل جلاله په هغوی عذاب نازلوي، تر هغه وخته پورې چې زه د الله جل جلاله او د رسول ﷺ اطاعت کوم زما اطاعت پر تاسې لازم دی او که الله جل جلاله مه کړه ما د الله جل جلاله له امر څخه نافرماني وکړه زما اطاعت پر تاسې واجب نه دی. هغه وخت چې نبي کریم ﷺ رحلت وکړ ټول عرب لا پوره مسلمانان شوې نه و، له همدې کبله کله چې محمد ﷺ د رحلت خبر یې واورېده نو ځینو کسانو بغاوت وکړ، ځینو زکات له ورکولو څخه انکار وکړ او ځینو د پیغمبرۍ دعوې وکړي لکه مسلمه کذاب اسود بن کعب، طلیحه بن خویلد، سجاع بنت حارث او داسې نور کسان و، چې پوره بحث به یې وروسته په مفصل ډول راشي. محمد ﷺ مخکې له رحلت څخه یو لښکر د اسامه بن زیدرضي الله عنه په مشرۍ د شام خوا ته د تللو هدایت ورکړی و، خو د محمد ﷺ د وفات کېدو په علت سره دا لښکر وځنډېده کله چې ابو بکر صدیق رضي الله عنه خلیفه شو سره د ټولو مخالفینو چې صحابه کرامو وښوده چې په دې حساسو شرایطو کې باید دا لښکر د شام خواته ونه لېږل شي، خوابوبکر صدیق رضي الله عنه د محمد ﷺ د هغه حکم د عملي کولو په خاطر یې اسامه بن زید د شام خوا ته ولېږه او وروسته له څلوېښت ورځو اسامه بن زید رضي الله عنه له بریالیتوب سره له شام څخه مدینې منورې ته راستون شو ابوبکر صدیق رضي الله عنه په خپله هغه قبیلې چې مرتد شوې وې، سرکوبې کړې او بېرته یې اسلام قبول کړ ابوبکر صدیق رضي الله عنه داخلي شور شونو د سرکوبولو لپاره یې یولس ډلې سپاهیان برابر کړل او بېلو بېلو ځایونو ته یې واستول طلحه د بني اسد د قبیلې مشر د نبوت دعوه کړې وه سربېره له خپلې قبیلې څخه د بني غطفان او ځینې نورو قبیلو ته هم د ده ګمراهۍ سرایت کړی وه، خالد بن ولید رضي الله عنه د ده د سرکوبولو لپاره مؤظف شو.

**د ابوبکر صدیق ﷛ جهاد او د مرتدينو ماتې**

ابوبکر صدیق ﷛ عزم او اراده وکړه، چې په جزيرة العرب کې د اسلام دښمنان او مرتدين محوه او نابود کړي نو د اسلام د اصولو مطابق يې يولس ډلې سپاهيان برابر کړل او د هرې ډلې لپاره يې يو يو امير وټاکه او د جنګ ميدان ته يې ولېږل او هغوی ته يې دستور صادر کړ، چې له دښمنانو سره له انسانيت څخه کار واخلي يولس ډلې سپاهيان په لاندې ډول دي.

١. د لومړني لښکر مشر خالد بن وليد ﷛ و چې طلحه بن خويلد مقابلې ته چې د بني اسد د قبيلې مشر و ولېږه.

٢. د دويم لښکر مشر عکرمه بن ابي جهل ﷛ چې د مسلمة الکذاب چې د دروغو د پيغمبرۍ دعوه يې کړې وه، يمامې ته ولېږه.

٣. د درېيم لښکر مشر مهاجرين بن ابی اميه چې د فلول جنګ چې په يمن کې و د اسود غنسي مقابلې ته ولېږه.

۴. د څلورم لښکر مشر خالد بن سعيد العاص دشام اطرافو او نږدې منطقو کې مرتدينو ته ولېږل شو.

۵. د پنځم لښکر مشر عمرو بن عاص و چې د اهل قضاعه د مرتدينو مقابلې ته تيار شو.

٦. د شپږم لښکر مشر حذيفه بن محصن د عمان د مرتدينو لپاره انتخاب شو.

٧. د اووم لښکر مشر عرفجه بن هرشمه د مهره د قبيلو د مرتدينو لپاره تيار شو.

٨. د اتم لښکر مشر شرجيل بن حسنه د عکرمه بن ابو جهل د مرستې لپاره وټاکل شو.

٩. د نهم لښکر مشر معن بن حاجر سلمي د بني سليم او بني هوازن

د مرتدينو لپاره انتخاب شو.

۱۰. د لسم لښکر مشرسويد بن مقرن د تهامه د مرتدينو لپاره وټاکل شو.

۱۱. د يوولسم لښکرمشر علاء حضر مي د بحرين د مرتدينو لپاره وټاکل شو.

**د ابوبکر صديق رضي الله عنه نظامي قوماندانانو ته هدايات:**

ابوبکر صديق رضي الله عنه د اسلام د لښکرو قوماندانانو مخکې له دې څخه چې په جنګ شروع وکړي توصيه وکړه هغه دعوت نامې چې دابوبکر صديق رضي الله عنه لخوا درکړی شوي دي د حملې کولو څخه مخکې د قوم مشرانو ته وسپارئ په هغه دعوت نامو کې ليکل شوي و.

**بسم الله الرحمن الرحيم**

د رسول الله ﷺ خليفه ابوبکر صديق رضي الله عنه اسلام په هغه چا د هدايت پېروي کوي او وروسته له هدايت څخه ګمراهي او ضلالت نه قبلوي، بېشکه زه تاسې ته الله جل جلاله تعريف کوم چې الله جل جلاله هغه ذات دی، نشته پرته له دې څخه ، بېشکه الله جل جلاله يو دی او هيڅ شريک نه لري، بېشکه محمد ﷺ د الله جل جلاله بنده او د الله جل جلاله رسول دی. موږ ايمان راوړی او اقرار کوو، په هغه څه چې هغه راوړی دی څوک چې له هغه څخه انکار وکړي موږ هغه نه منو او د هغه په مقابل کې جهاد کوو، ماته خبر رارسېدلی دی د هغه کسانو چې له اسلام څخه بېرته ګرځېدلې او مرتد شوي دي وروسته له هغه څخه چې اسلام راوړي.

او د اسلام په منلو يې اقرار او عمل کړی وي اوس يې دوکه خوړلې او يا د الله جل جلاله د احکامو او امرونو څخه جاهل دي او د شيطان دعوت يې قبول کړی دی ما د اسلام له لښکر سره د ستاسې د لارښوونو لپاره

قاصد درلېږلی دی د مهاجرینو، انصارو او تابعینو لښکر ته مې قومنده ورکړې ده، چې مخکې د اسلام له دعوت څخه چې جنګ پیل نه کړئ، پس هر چا چې د اسلام دعوت ومانه اقرار یې وکړ او نیک عمل یې سرته ورساوه هغه نجات وموندہ او هر چا چې له تاسې څخه انکار وکړ د هغه په باره کې مې دستور ورکړی دی چې له هغه سره وجنګېږي ما خپل قاصد ته امر کړی دی، چې زما دعوتنامه د ستاسې په مخکې ولولي دغې دعوت نامې دابوبکر صدیقؓ ډېر خلک د ګمراهۍ او ضلالت څخه خلاص کړل او ډېرو مرتدینو عناد او قصد وکړ چې د هغوی په مقابل کې جنګ پیل شو.

## د نبوت مدعیان او د هغوی اعمال

د محمد ﷺ د ژوند په وروستیو کې اسود غسني چې عبهله ذی الخمار باندې مشهور و په یمن کې د نبوت دعوه وکړه محمدﷺ د هماغه ځای مسلمانانو ته دستور ورکړ، چې ورسره وجنګېږئ او او پېروان یې قتل کړئ وروسته له هغه څخه د ابوبکر صدیقؓ د خلافت په وخت کې څلورو تنو نورو د نبوت دعوه وکړه ، چې د هغه په شاوخوا کې ډېر پېروان جمعه شوې و هغه څلور تنه مسلمة الکذاب په یمامه کې او طلحه بن خویلد د بني اسد په قبیله کې لقیط بن مالک په عمان کې او یوې ښځې سجاع بنت حارث تیمیه چې د عراق په جنوب کې وه د نبوت مدعي وه.

**مسلمة الکذاب:**

مسلمة الکذاب یو ډېرستر او ناوړه دعوه کوونکی و له ټولو څخه یې ډېر پېروان درلودل د جنګ له نظره هم ډېر کلک خلک و شکل او قیافه یې د احترام لایقه نه وه، ځکه چې ډېرې کوچنۍ سترګې، کږه پزه، ژیړ رنګ او

ډاسې نور غیر انساني خصلتونه یې درلودل، د ژوند په مرحله کې دیوې ډلې سره چې د وفد بني حنيفه په نامه یادیدل د وفود په کال د اسلام د قبولو په خاطر مدينې ته ولاړ څه وخت چې مدينې ته داخل شول مسلمة الكذاب يې د مال د ساتلو لپاره محافظه کار مقرر کړ او نور د محمد ﷺ حضور ته حاضر او د اسلام قبلول یې اعلان کړل پیغمبر ﷺ ځینې هدايات دوی ته ورکړل نوموړې ډلې د مسلمه نوم هم هلته د پیغمبر ﷺ په حضور کې یاد کړ، چې هغې ته يو څه اندازه د دغه هدايت څخه عطا کړئ د دې لپاره چې هغه له دوی څخه بدتر نوي څه وخت چې دغه وفد خپل ځای ته ورسید د مسلمة الكذاب خبيث په زړه کې د نبوت وسوسه پیدا شوه او د نبوت دعوه یې وکړه او گومان یې وکړ چې په ده باندې وحې نازلیږي.

په گډو وډو (مسجع) او په مانا خبرو یې شروع وکړه قوم به یې دې خبرې تصديق کولې، ډېرو د قومي تعصب له مخې د هغه پیروي او متابعت کاوه د هغه لويو مسلمانانو له جملې څخه چې د ده سره یې مرسته کوله هيو د نهار الرجال بن عفوه څخه چې د مهاجرينو له جملې څخه و دا د هغه کسانو له جملې څخه دی، چې د نبي کريم ﷺ سره یې ډېره مقابله وکړه او بيا په اسلام مشرف شو، نوموړي قران ولوسته او په فقه کې پوره عالم شو وروسته بيا نبي كريم ﷺ د اسلام د قران د زده کړې لپاره د بني حنيفه قبيلې ته چې په يمامه کې اوسيده ولیږه، زيات وخت لا نه وتېر شوی چې مسلمه د ډېر مال په تمه خلکو ته فريب ورکړ او ځانته یې دعوت کړ په دې جمله کې نهار الرجال هم شامل و ، چې د پیغمبر ﷺ د هغه مهم امرڅخه چې ده ته سپارل شوی و منحرف شو او د دنيا د عيش او عشرت په خاطر يې دمسلمه سره اقرار وکړ د نوموړي سړي يوځای کېدل له مسلمه سره د مسلمه د ادعاګانو ډېر قوي دليل وګرځېد او د

هغه په ګمراهۍ کې پوره مرسته وکړه او حتی مسلمه ته يې جرئت ورکړ چې د محمد ﷺ دربار ته يې يو ليک وليکلو او ويې ويل:

من مسلمه رسول الله الی محمد رسول الله . اما بعد(۱) فان لنا نصف الارض ولقريش نصفها ولکن قريش لاينصفون والسلاکم عليک.

ژباړه: طرفه د مسلمه رسول د الله جل جلاله محمد ﷺ د الله جل جلاله ته اما بعد: ژباړه :بېشکه نيمايي ځمکه زما ده او نيمايي د قريشو ده، مګر قريش انصاف نه کوي او هغه نه نيمايي کوي.

سلام په تا محمد ﷺ د مسلمة الکذاب د ليک په ځواب کې وليکل:

**بسم الله الرحمن الرحيم**

من محمد رسول الله الی مسلمة الکذاب اما بعد: فان الارض الله يور ثهامن يشاء من عباده والعاقبة للمتقين والسلام علی من اتبع الهدی.

د محمد رسول الله ﷺ له طرفه مسلمة الکذاب ته اما بعد: بېشکه ځمکه د الله جل جلاله ده، چې په خپلو بنده ګانو کې هر چاته وغواړي ورکوي يې اوښه عاقبت د پرهېزګارانو دی او سلام په هغه چا چې د هدايت پېروي کوي.

مسلمه د ابوبکر صديق رضي الله عنه له اطاعت څخه سرغړونه وکړه په خپل شاوخوا کې څلوېښت زره (۴۰۰۰۰) سوارۀ د بني حنيفي له قبيلې څخه د ځان د دفاع لپاره راجمعه کړي و، دابوبکر صديق رضي الله عنه لښکر پرې يرغل وکړ او باطل لښکر ته يې ماتې ورکړه او نهارالرجال مر دود او خائن ووژل شو او اسلامي لښکرو د کفارو په لښکرو باندې په ډېر شدت سره حمله وکړه، تردې چې د کفارو لښکرې تېښتې ته مجبورې شوې مسلمه

۱- د محمد اسماعيل ابراهيم لکينه ۲۷

او لښکريانو يې يو لوی باغ ته چې ډېر جګ دېوالونه يې درلودل پناه يوړه او خپلو ملګرو ته يې اواز وکړ شايد په دغه ځای کې د اسلام د لښکرو څخه په امن کې پاتې شو، په دې وخت کې چې د خالد بن وليدرضي الله عنه لښکر دعکرمه بن ابې جهل د مرستې لپاره راغلی وو، د باغ په دېوالونو باندې د زمريانو په شان ورواوختل او با غ ته داخل شو او په باغ کې د دواړو لښکرو ترمنځ ډېر سخت جنګ شروع شو په زرهاوو[۱] تنه له دواړو طرفو څخه ووژل شول، حتی چې دې باغ موت په نامه ونومول شو. مسلمة الکذاب د مسلمانانو د لښکر چې په دې ډله کې وحشي رضي الله عنه چې د اُحد په غزا کې د محمد ﷺ تره ((کاکا)) حمزه رضي الله عنه شهيد کړی و، وجود درلوده مسلمة الکذاب يې هم وواژه له دې ورځې څخه وروسته د مسلمه فساد او فتنه ختمه شوه او بني حنيفه قوم دويم ځل لپاره په اسلام مشرف شو.

**طلحه يا طليحه بن خويلد:**

طلحه بن خويلد د دروغجنو مدعيانو له نبوت يوتن څخه دی، د بني اسد د قبيلې فالبين او کاهن انسان و، قوم د ده متابعت او پېروي کوله، همدارنګه د طی او غطفان قبيلو هم د دې پېروي کوله. دا مدعي و، چې په دې باندې له اسمان څخه ځنې وحې راځې، په قيافه هم برابر او په مسجع ډول يې خبرې کولې او د الله جل جلاله وحې ته به يې نسبت کاوه، يو د مسجع خبرو څخه يې دا ده الحمام[۲]، واليما[۳] والمصرد[۴] الصيام قد

---

۱ - له مسلمانانو څخه ۱۲۰۰ تنه چې ۳۷ تنه د قران حافظان و شهيدان شول او له کفارو څخه ۲۱۰۰۰ تنه ووژل شول.

۲ - کبوتر يا کوترې

۳ - د کوترو يوه نوعه

۴ - يو الوتونکی دی، چې غټ سر لري او د ښکار لپاره پکارېږي.

عشن قبلكم با عوام لبيلفن ملكن العراق والشام.

ژباړه: قسم دی په دې درې نوعه کوترو باندې چې يمام او صرد تيز رفتاري چې دې ټولو څوکاله مخکې له تاسې څخه ددنيا په مخ ژوند کاوه شايد ورسيږي زما سلطنت عراق او شام ته

دې برنامې د محمد ﷺ له وفات څخه وروسته پراخوالی او غښتلتيا پيدا کړه، خالد بن وليد رضي الله عنه له خپل لښکر سره په دوی باندې يرغل وکړد دښمن لښکر ته يې ماتې ورکړه، د بني طی قبيله ورڅخه جلا شوه او د بني اسد قبيله ورسره مرستياله وه، چې په پای کې په دې قبيله باندې هم حمله وروړه او دا ګمراه شام ته فرار شو او ځان يې پټ کړ، کله چې يې واوريدل چې قوم يې په اسلام مشرف شوی، نو دی هم مسلمان او د حج عمره يې اداء کړه او ابوبکر صديق رضي الله عنه هم دده له ګناهونو څخه صرف نظر وکړ او هغه يې في سبيل الله جهاد ته سوق کړ، د نبوت له مدعيانو څخه يو صاحب د تاج لقيط بن مالک ازدی د عمان اوسيدونکی و، چې د محمد ﷺ د ژوند په زمانه کې اسلام راوړی و، لکه څه موده وروسته نوموړی شخص ګمراه شو او د نبوت مدعي شو او د دې له قوم څخه يو شمېر خلکو دده پيروي کوله، د خپلو ملګرو او پيروانو سره يې د دبا په ښار کې راټول شول او د اسلام لښکر د کفارو په لښکروحمله وکړه او دښمن ته يې سخته ماتې ورکړه او دا فتنه او فساد هم ختم شو.

**سجاح بنت الحارث:**

سجاح بنت الحارث د تيميه يوه ښځه چې د پلار لخوا د بني يرسوع او د مور له طرفه د بني تغلب د قبيلې ته نسبت کېده چې د عراق په جنوب کې استوګنه درلوده. کهانت په دوی کې زيات رسم او رواج درلوده، سجاح هم د بني تغلب په قبيله کې واده کړې وه، د اسلام او نصرانيت په مقابل کې ډېر په شدت سره بغض او عداوت ښکاره کاوه په دې نسبت

هم مشهوره او قوي شوه، څه وخت چې د نبي كريمﷺ له وفات څخه خبره شوه ګومان يې وكړ، چې اوس ښه فرصت دى، چې خپل باطل اغراض په خلكو عملي كړي، نو د نبوت دعوه يې وكړه، د دې له قوم څخه ډېرو خلكو د دې پيروي كوله. يو لوى لښكر د ابوبكر صديقؓ د مقابلې لپاره او د مدينې د تسلط په غرض راټول كړ او دسجاح تحريكوونكي او جرئت وركوونكي عاملين د فارس حكمرانان وو، چې د عربو طاقت او قوت دوى ته تهديد متوجه كړى و په همدې نسبت يې سجاح د عربو په مقابل كې تحريک كړه او مخالفت ته يې مجبوره كړه، سجاح له خپل لښكر سره د مدينې منورې په طرف حركت وكړ او غوښتل يې چې په مدينه منوره باندې حمله وكړي. په لاره كې د مالک بن نويره سره مخامخه شوه، نوموړى شخص د يمانې له قبيلې څخه و چې د اسلام اوكفر ترمنځ متحير وڅه وخت چې پوه شو چې سجاح په مدينه منوره باندې د حملې كولو اراده لري، نو هغه ته يې مشوره وركړه، چې د مدينې منورې له حملې كولو څخه بېرته وګرځي.

د دې لپاره چې د مسلمانانو په مقابل كې د جنګ قدرت او توان نه لري، كېداى شي چې د جسماني تكليفونو او مشكلاتو سره مخامخ شي، همدارنګه سجاح د يمانې خبرو ته غوږ كېښود.

او د يماني مشوره يې قبوله كړه او بېرته وګرځېده او د يمامه په طرف د مسلمة الكذاب مقابلې ته روانه شوه، چې دا هم د نبوت مدعي وه، كله چې يمامه ته ورسيده د مسلمه سره خبرې شروع شوې، څرنګه چې مسلمة الكذاب په مكر او هيله كې له سجاح څخه ډېر ماهر و، نو سجاح يې خبرو كولو ته راضي كړه، چې له دې سره مناقشې او مناظرې ته حاضره شي، په موږ دواړو كې كه د هريو د نبوت ادعا ثبوت شوه حق د هغه دى پس دواړه مباحثې ته سره كېناستل په مسجع او بې مانا او ناوړه

خبرو باندې سجاح مسلمة الكذاب ته تسليمه شوه او بيا مسليمة له سجاح څخه يې د ازدواج كولو غوښتنه وكړه او سجاح دا غوښتنه وكړه، دا دواړه سجاح او مسلمه يمامه ته ولاړل او هلته مقيم شول، ترڅو چې مسلمه ووژل شو، سجاح په حالت د مغلوبيت كې د خپل په طرف لاړه او د معاويه رضي الله عنه تروخته پورې ژوندۍ پاتې شوه او بالاخره مسلمانه شوه، د بني تميم په قبيله كې يو څه مفسدينو د زكوة د وركوله څخه انكار وكړ چې دا خلک د پيغمبر ﷺ په زمانه كې په اسلام مشرف شوي و، پيغمبر ﷺ له دې خلكو څخه ځينې د ديني امورو اميران ټاكلي و، چې د هغوې له ډلې څخه يومالک بن نوېره و، دا د يبن يربوع د قبيلې سرپرست وڅه وخت چې د پيغمبر ﷺ له وفات څخه خبر شو مالک او قوم يې د زكات له وركولو څخه انكار وكړ. كوم وخت چې خالد بن وليد رضي الله عنه د مرتدينو په مقابل كې كاميابې حاصله كړه او د مالک له دغه حال څخه خبر شو حيران شو، چې ايا بېرته د پخوا په شان په اسلام مشرف شي او يا د ارتداد په حالت كې مصر ته تېښته وكړي، ځينې روايات په دې دلالت كوي، چې مالک د دهريت په حالت كې بېرته مصر ته ولاړ او خپل قوم ته يې نصيحت وكړ، چې د خالد بن وليد رضي الله عنه د حملې له وېرې څخه ريګستانونو ته فرار وكړئ او متفرق شئ. خالد بن وليدرضي الله عنه خپل لښكر ته امر وكړ، چې له هغوی سره خبرې وكړي، چې هرڅوک له اسلام څخه انكار وكړي، هغه په قتل سره ورسوئ او نور لښكر د مالک بن وېره د نيولو په غرض په هماغه ځای كې مستقر كړو ترڅو چې خالدبن وليد رضي الله عنه د هغه په وژلو باندې بريالی شو او خالد رضي الله عنه د هغه د ښځې سره ازدواج وكړ، هغه ازدواج د مدينې د خلكو په نظر بد ښكاره شو او د خپګان موجب وګرځېده، خصوصاً عمر رضي الله عنه د ابوبكرصديق رضي الله عنه څخه وغوښتل چې خالد د لښكر د قيادت او سرپرستۍ څخه معزول

کړي خو ابوبکر صديق رضي الله عنه د عمر رضي الله عنه د رايې سره موافقه ونه کړه او ويي ويل:
هغه توره چې الله جل جلاله له خپل تيکي څخه د کفارو په مقابل کې راليږلې ده، زه يې هيڅ کله په تيکې کې نشم بندولی، وروسته له دې څخه د خالد رضي الله عنه د برائت اسباب روښانه شو، ابوبکر صديق رضي الله عنه د ده د برطرف کولو څخه صرف نظر وکړ.
په دې مسلسل جهاد کې مسلمانان قادر شو، چې د نبوت د مدعيانو فتنې او د تعصب ريښې وباسي، ډېرو عربو خيال کاوه چې البته اسلام له دې لپاره راغلی دی، چې د قريشو قومونه دې په نورو قومونو باندې حاکميت او سلطه ولري او نور قومونه دي په غربت او فقر کې وساتي؛ نو د همدې فکر او خيال په خاطر يو شمېر خلک دې ته تيار شول چې نبوت منحل او نور قومونه له دوی سره مرستې ته حاضر شي او د قبايلي تعصب څخه کار واخلي ترڅو د ټولو قبايلو رياست لاس ته راوړي د دې موضوع د تائيد په خاطر کولی شم چې د مسلمة الکذاب له پېروانو څخه د يوه تن د وينا دليل دلته رانقل کړم:
اشهدانک کاذب او ان محمد صادق ولکن کذاب بني حنيفه احب الينا من صادق قريش.
ژباړه: زه شاهدي ورکوم، چې مسلمة الکذاب د دروغجن دی او محمدصلی الله عليه وسلم صادق او رښتينی دی، ولې زه د بني حنيفه درواغ ويلې ډېر خوښوم د قريشو له رښتيا ويلو څخه.
يو له هغه څخه چې د ابوبکر صديق رضي الله عنه له خير څخه حسابېږي هغه د کفارو له بنديانو سره نيک او ښه سلوک دي او ويل به يې: چې کېدای شي دوی اصلاح او د اسلام هدايت قبول کړي د بدر د بنديانو په باره کې هم د ابوبکر صديق رضي الله عنه همدارنګه کړنلاره وه.

## د قران کريم راټولول

له ټولو جنګونو څخه د يمامه[۱] جنګ ډېر شديد او سخت و، همدارنګه په نوموړي جنګ کې تکاليف وژنې او قربانۍ د دواړو خواوو ډېره زياته وه، د دې غزواتو په سنګرونو کې ډېر شمېر مهاجرين او انصار شهيدان شو، چې له دوی څخه ډېر زيات د قران حافظان وو او دوی همېشه د کفارو په مقابل کې غالب او ډېر سرتېرې ځوانان و او اکثره يې د لښکرو بيرغ وړونکې و، چې د دوی شعار همېشه فتحه يا شهادت وو، کله چې يمامه جګړه پای ته ورسېده او اکثره حافظان شهيدان شول، نو عمرﷺ د دوی په باره کې ډېر خپګان ښکاره کړ او ويې ويل: که چېرې همدارنګه دمرتدينو په مقابل کې جنګ ادامه پيدا کړي، لکه څرنګه چې د دوی سينې او زړونه چې د قران د ټولولو او تدوين په خاطر اشاره وکړه او ابوبکرﷺ دې موضوع ته په پوره اندازه متوجه نه و او نوموړې موضوع ته يې هم اماده ګې نه لرله، په لومړۍ مرحله کې يې د عمرﷺ قول رد کړ، دويمه مرتبه عمرﷺ دغه موضوع قابل د بحث وګرځوله ابوبکر صديقﷺ ځواب ورکړ هغه کار چې نبي کريمﷺ نوي کړی زه يې څرنګه هغه کار پای ته ورسوم، په دغه باره کې د عمرﷺ ا وابوبکرﷺ په منځ کې خبرې تقريباً يوه حده پورې مباحثې ته ووتلې بالاخره ابوبکر صديق يېﷺ قانع کړ او د نوموړي کار لپاره يې عمر ﷺ وټاکه او په کاريې شروع وکړه.

دې کار لپاره يې زيد بن ثابت رضي الله عنه راوغوښت چې دا د محمدﷺ په وخت کې د وحې ليکونکی هم وو، له ټولو حافظانو څخه يو

---

۱- د يمامه په جګړه کې ۳۷۰ تنه قريان د قران کريم شهيدان شوې و، د محمد اسماعيل ليکنه ۳۱

بهتر حافظ هم وو، ابوبکر صديق رضي الله عنه وفرمايل: چې ته يو پوه انسان يې او په کومه اندازه وحې چې په نبي کريم ﷺ باندې نازل شوې دي، هغه تاسو ليکلې دي د قران په ترتيبولو کې کوښښ وکړه او هغه اصولو کې راټول کړه په کوم ډول چې تاسو ليکلې وو، دا کار چې له مسووليت څخه ډک او مشکل کار و، په دوی باندې د ابوبکر صديق رضي الله عنه له خوا ډېر تاکيد وشو، چې په دې هکله ډېره توجه ولرئ هغه ايتونه چې د پوستکو په ټوټو او دپښونو په اوږو ( چارهې) او د خورما په پاڼو او نېزو ليکل شوي و، هغه يې په ډېر احتياط له بل سره تطبيق کړ او حتی د قران لويو حافظانو ټول قران راټول او ويې ليکه. دا کار په ډېر امانت دارۍ ديانت او په پوره صحت سره ترتيب او ختم کړ او په اصولو ترتيب سره تدوين شو او ابوبکر صديق رضي الله عنه ته يې وسپاره بيا د ابوبکر صديق رضي الله عنه له وفات څخه وروسته عمر رضي الله عنه کورته نقل کړ کله چې عمر رضي الله عنه وفات شو بيا دغه امانت په ښه ډول سره د عمر رضي الله عنه لور بي بي حفصه رضي الله تعالی عنها په حفاظت کې تقديم شو او دقران اياتونه د حافظانو په وسيله تلاوت او لوستل کېده، څرنګه چې د محمد ﷺ په زمانه کې همدا حال و او خلکو له يو بل څخه تلقين کاوه څه وخت چې عثمان رضي الله عنه خليفه شو دغه امانت يې د بي بي حفصې څخه وغوښت او له هغې څخه يې يو شمېر نورې صحيفې وليکلې چې په هر يو باندې د مصحف عثماني نوم کېښوده او هغه يې په ښارونو کې توزيع کړ د دې لپاره چې د اعتماد مرجع يوازې همدا صحيفې دي، نو دستور يې ورکړ، چې نورې نسخې له منځه يوسئ او کوم اختلافات چې د قران د تلاوت او قرائت په هکله و هغه ټول په يو وخت له منځه ولاړ او د قران د نصوص په هکله وحدت منځ ته راغی، څرنګه چې الله جل جلاله فرمايلي دي: ﴿ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴾

## اسلامي فتوحات

د عربستان په لويه ټاپووزمه کې د اسلام له ظهور څخه مخکې ټولو خلکو ژوند په بيابانونو او دښتو کې تېراوه او د دښتو او بيدياوو د ساده ژوند سره يې عادت موندلی و، دا خلک به په اوبو او څرځايونو باندې همېشه قتل او قتال کاوه، په هغه وخت کې خلک په دغه ځايونو کې په مالدارۍ، کښت او تجارت بوخت و په جزيرة العرب کې داسې يو حکومت چې دامنيت نظام بر قرار کړي او خلک د هغې متابعت او اطاعت وکړي، وجود نه درلوده غير د اهالي قبائيلي قوانينو څخه نورڅه موجود نه و، داسې يو اسماني دين چې په هغه باندې خلک ټول شي، موجود نه و بلکې خلکو د بتانو، ستورو او داسې نورو شيانو عبادت کاوه.

په دې وخت کې د عربو همسايه يوازې يهود او نصارا وو، چې د خپل عيش او عشرت په خاطر به يې همېشه په جزيرة العرب کې حملې کولې او زيات نقصان به يې رساوه او په دې وخت کې دا هر يو په خپله زمانه کې د ستر قدرت او طاقت خاوند و، چې دغه دوه دولتونه عبارت له فارس او روم اويا د اوسنۍ ايټاليا څخه وله دوی څخه هر يو د دې اميد وار وچې جزيرة العرب تجزيه او د خپل نفوذ لاندې يې راولي، د دې دواړو هېوادونو په منځ کې يو عظيم جنګ شروع شو. په لومړۍ مرحله کې فارس په روم باندې غالب شو، د څه مودې څخه وروسته روم په فارس باندې غلبه حاصله کړه، قران هم دغې موضوع ته اشاره کړېده او د روم په سورت کې يې فرمايلي دي:

﴿ غُلِبَتِ الرُّوْمُ ۝ فِيْٓ اَدْنَى الْاَرْضِ وَ هُمْ مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُوْنَ ۝ فِيْ بِضْعِ سِنِيْنَ ۬ لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَ مِنْۢ بَعْدُ ؕ وَ يَوْمَىِٕذٍ يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ بِنَصْرِ اللّٰهِ ؕ يَنْصُرُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَ هُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۝ ﴾

ژباړه: روميان د فارسيانو په واسطه مغلوب شول، په هغه جنګ کې چې د عربو په نزدې[۱] ساحه کې واقع شوې وه، يانې روميان وروسته له مغلوبېدو څه ډېر ژر بېرته په فارسيانو باندې غالب شو، روميانو دغه کال د اميدوارۍ کال وباله او په شول، چې د نړۍ ټولې چارې او کارونه قبلې او که بعدي کېدونکې دي ټول د يو الله ﷻ د امر پورې تعلق لري، په هغه ورځ چې روميان فاتح شو، څرنګه چې الله ﷻ له اسلام سره وعده کړې وه، دغه کاميابي او پېروزي د مؤمنانو لپاره د خوشحالي باعث وګرځېده، يانې الله ﷻ فتحه ورکوي هغه چاته چې خوښه او رضايي وشي الله ﷻ غالب او مهربانه دی، په پورتني ايت شريف کې د روميانو [۲] (مسيحي) غلبې ته اشاره ده، په فارسيانو کې اتش پرستو باندې دغه اوږده جنګونه د دواړو دولتونو د ضعيف او کمزورۍ سبب وګرځيده، کله چې پورتني دولتونه له ضعيف سره مخامخ شول، نو د اسلامي دولت د قوت او طاقت څخه وېرېدل کله چې عرب د اسلام د بېرغ لاندې متحد شول، په همدې علت باندې د روم او فارس هېوادونه چې يو له بل سره مشترک سرحد درلود عهد او پيمان وکړ چې دواړه هېوادونه (روم او فارس) او هم د غسانيه په شمول چې دا هم له دوی سره د مشترک سرحد لرونکی و د اسلامي دولت په مقابل کې متحد او متفق شو، د فارس بادشاه کسرى (خسرو پروېز) او د روم پاچا قيصر نومېده عراق د ايران تراغېزې او شام د روم ترکنترول لاندې وو، په روميانو باندې د ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت په وخت کې د اسلام لښکر د اسامه بن زيد په مشرۍ په روميانو حمله وروړه چې نوموړی لښکر د محمد ﷺ

---

۱- دا نزدې ساحه د شام د اطرافو او يا جزيرې څخه عبارت دی

۲- له روميانو څخه مراد مسيحان يا اهل کتاب دي.

د اسلام د بلنې قاصدان ورلېږلي وو او د دغه هېواد لخوا دغه نماينده ګان د تهديد سره مخامخ کړي و، د ابوبکر صديقؓ فيصله او مشوره دا وه چې د لومړي ځل لپاره بايد په شام حمله وکړي مګر ټولو صحابه وو د دې کار د مخالفت کاوه، ځکه دوی غوښتل چې لومړی بايد د مرتدينو په مقابل کې لښکر کشي وکړي او د مرتدينو مقاومت په داخل کې ختم کړي مګر ابوبکر صديق ؓ پخپله رايه پافشاري کوله او ويل کوم لښکر چې محمد ﷺ د اسلام د دښمنانو په مقابل کې مجهز کړي دي زه هغه هېڅکله نشم فسخه کولی ابوبکر صديقؓ د اسامه بن زيد په اس باندې سپور و، مګر اسامه په دغه عمل باندې را ضي نه و، ابوبکر صديقؓ ويل زه غواړم يو څو قدمونه د الله جل جلاله د رضا لپاره واخلم او خپل لښکر ته يو څو د نصيحت خبرې وکړم.

خيانت، غدر او بې وفايي ونه کړئ، هېڅ نامشروع او ناروا عمل ته اراده مه کوئ، غوړونه، پوزې، د دښمن مه قطعه کوئ، کوچنيان، زاړه خلک او ښځې ونه وژنئ له خلکو سره جګړه کوئ، چې د تاسو په مقابل کې جګړې ته حاضر وي بې له ضرورت څخه ميوه لرونکې ونې پرې نه کړئ او حيوانات بې له ضرورته ونه وژنئ په هغو راهبانو چې د نيا يې پرېښي او په صومعه کې يې دلوی څښتن عبادت ته ځانونه وقف کړي وي ، ونه لړېږئ هر ډول خواړه چې درته راشي د الله جل جلاله نوم ياد کړئ بيا يې وخورئ او نور هر ډول روا وېپښې چې دجنګ په جريان کې واقع کېدلی د هغې درته اجازه درکړل شوه، اوس نو ځئ الله مو مل شه په نوموړي جنګ کې مسلمانان بريالي او د ډېر غنيمت سره يوځای د مدينې په لور راوګرځېدل هغه څه چې په دې پېښه کې د يادولو وړ دي هغه د اسامه بن زيدرضي الله عنه عمر چې له شلو(۲۰) کالو څخه يې تجاوز نه کاوه، د هغه تجربه او جرئت دی چې نبي کريمﷺ اسامه بن زيد په دې غرض د

دغه لښکر سرپرست مقرر کړی و، ترڅو د خپل پلار انتقام چې د موته په غزا کې یانې (د رومیانو په مقابل) کې په شهادت رسېدلی و واخلي د اسامه لښکر کولی شول چې په شلو ورځو کې د بلقا محل ته ځان ورسوي او اسامه بن زید په هغه اس باندې چې پلار یې پرې سپور او وژل شوی و دا هم سپور و اسامه د دښمن په لښکر باندې حمله وروړه ډېر یې ورڅخه ووژل او ځینې اسیران کړل او د ډېر غنیمت سره بېرته راوګرځېدل داسامه دغې فتحې دشام ښارونو او د عراق خواته لاره خلاصه کړه مګر د فاصلې د لرې والي په وجه او د مرتدانو د ارتداد له کبله ابوبکرصدیق رضي الله عنه په دغه مرحله کې د عراق د نیولو فکر نه درلوده، مګر څه وخت چې د اسلام لښکر په مرتدینو باندې موفق شو او د هغې کامیابې روښانه شوه، نو یو شمېر د اسلام شجاعو ځوانانو ځانونه د اسلام د دفاع او د اعلاء کلمة الله لپاره وقف کړل، چې د هغوې له جملې څخه یو مثنی بن حارثه شیباني دی چې د خپلو مجاهدینو ورونو سره یوځای د بحرین په شمالي برخه حمله وکړه او د اسلام په دښمنانو باندې یې بریالیتوب ترلاسه کړ ترڅو شطاالعرب (دجلی او فرات) ته ورسېدل څه وخت چې ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته څرګنده شوه، چې نوموړې (مثنی بن حارثه) د بحرین اوسېدونکې او د بکر بن وائل له قبیلې څخه دی او د مرتدینو سره (با علان بن حضر می) په جنګ لګیا دی، نو په فکر کې شو چې ایا له هغه لښکر څخه چې د عراق په جنوب کې په جګړه بوخت و مرسته وغواړي او یا د عربو هغه قبائل چې د دولت تابع و او پخوایي د روم د ولت په واسطه شکست لیدلی و او په دغه وخت کې ضعیف او په بد حال مبتلا وو، په دوی باندې حمله وکړي ځکه چې په دوی باندې په دې وخت کې فتحه او غلبه اسانه وه او د فارس ښارونو ته لاره هم اواره وه مګر بیا د ځینو عذرونو په وجه له دې تصمیم

څخه تېرشو ترڅو چې دا ښارونه او د فارس دولت د عمر بن خطابرضي الله عنه په وخت کې فتحه او د اسلام دکنترول لاندې راغلل.

**له رومیانو سره جګړه:**

خالدبن ولید رضي الله عنه لا د عراق له جګړو څخه نه و فارغ شوی چې د خلیفه لخوا په داسې حال کې چې نیم لښکر ورسره وو، د شام لور ته ولېږل شو څکه چې په دې وخت کې سختې جګړې له رومیانو سره شوې وې، خالد رضي الله عنه سمدلاسه د شام په لور وخوځېد او په عراق کې یې مثنی بن حارث رضي الله عنه په خپل ځای پرېښود.

موږ پخوا وویل چې د ساسانیانو او بزنطیانو (ختیځ رومیان) دې سترې امپراطورۍ د مسلمانانو دي ګړندي پرمختګونه ته ګوته په غاښ نیولي او حیران پاتې شول ځکه د سر په سترګو یې ولیدل چې هغه بېرته پاتې او پاشلې قبیلې چې له ډېرو پخوانیو پېړیو یې یو له بل سره مخالفتونه درلودل او تل د یو بل پر ضد ولاړې وې، څرنګه یې اوس د اسلام په کلکه رسۍ منګولې کلکې کړې یو لاس او یو وجود ګرځېدلی او یو مقتدر حکومت یې جوړ کړی رومیانو د موتې جګړه او د تبوک یرغلونه نه و هیر کړي او د عربانو د مېړانې او سربښندنې څخه هم ښه خبر وه، غوښتل یې په داسې وخت کې چې د اسلام دلښکرو ډېره برخه له ایرانیانو سره په جګړه کې بوختې وې د مسلمانانو په ضد په جګړه لاس پورې کړ او یو مخ یې سره ورک او له منځه وباسي ( یو پناه یې کړي) نو یې په همدې غرض ډېر زیات سپاهیان راټول او په علمیاتو یې لاس پورې کړ، همدا سبب و چې د اسلام یو کوچنی دولت په یو وخت کې له دوو قوي دولتونو سره مخامخ شو لومړنی لښکر چې خلیفه د رومیانو مقابلې ته راولېږه مشر یې خالد بن سعد و، څرنګه چې دی د شام سرحدونو ته راورسېد او د دښمن له قوت څخه خبر شو قضیه یې د

هدایت په غرض خلیفه ته ولیږله دا چې د خالد ښو فتوحاتو چې په ختیځ کې کړې وې د خلیفه زړه قوي او خوشحاله کړی وو او هغه ولجې چې مسلمانو مجاهدینو لاس ته ورغلي وې لومړی یې دیته تشویق کړل چې په خپله خوښه جګړې ته حاضر شي له همدې سببه خلیفه د (۱۲) هـ کال په پای کې وکولای شول چې څلور ډلې لښکر چمتو کړي چې یوه یې د یزید بن ابوسفیان په مشرۍ دمشق ته ولیږله او بله یې د عمرو بن عاص په سردارۍ فلسطین ته او دریمه د شرجیل بن حسنه تر مشرۍ لاندې د اردن په فتحه مامور کړه او ابو عبیده بن جراح د خلیفه د فرمان په اثر د حمص لور ته وخوځېد دغو سپاهیانو شمېر مورخین (۳٦) زره تنه ښکې ښايي په دوی کې د خالد بن ولید لښکر چې له عراق څخه راغلی وو هم شامل و هر قل (هراکیلوس) د روم امپراطور د دغو ټولو لښکرو په مقابل کې ډېرې زیاتې لښکرې راولیږلې ځکه د جګړې له نتیجې څخه یې پوره ډاډ درلود سرېېره پر دغو لښکرو یې وکولای شو چې د شام، فلسطین او اردن له هر ډول قوې څخه د مسلمانانو په ضد کار واخلي څرنګه چې خلیفه د دښمن د دې ډول نقشې څخه خبر شو خالد بن ولید ته یې امر ورکړ چې له یو شمېر لښکر سره د شام په لور وخوځېږي او په یرموک کې د نورو اسلامي لښکرو سره یوځای شي.

خالد بن ولید رضي الله عنه کلک قصد وکړ چې د یو ګوښه لارې که څه هم زیات تکلیف ولري په لږ وخت کې ځان شام ته ورسوي ترڅو چې کار له لاسه ونه وځي هماغه و چې په پنځو ورځو کې داسې بریالې شو چې خپله نقشه عملي کړي څرنګه چې د جګړې ډګر ته ورسېد په حربي سمون او سمبالولو بوخت شو، پخوا تر دې چې جګړه ونښلي د اسلامي لښکر مشرانو دا ډول تړون وکړ چې د دوی اعلی قوماندانې دې د پېچي اچولو پواسطه وار په وار یو بل ته ورکول کېږي یې په لومړي ورځ د دغه کار

لپاره خالد وټاکل شو او سم له لاسه خبر ورته راغی چې دښمن سبا د یرغل کولو خیال لري ده هم لاس په کار پورې کړ او د جګړې نقشه یې دا ډول ترتیب کړه ترڅو یو کوچنی او لږ لښکر د یوې سترې قوي په مقابل کې مقابله وکولای شي. یرموک د شام په لاره کې واقع دی، مورخین وایي چې په دې جګړه کې د اسلام لښکر د پرش یا شپږ دیرش زرو تنو ته رسیده او د دښمن د سپاهیانو شمېر دوه سوه او څلوېښت زره بولېو دا جګړه چې د مسلمانانو او رومیانو ترمنځ پېښه شوې ترټولو هغو جګړو لویه ده، چې د دې ترمنځ پېښې شوې دي.

خالد ﷺ خپلې لښکرې په ۳۸ برخو وویشلې او مسلمانان یې په څلورو خواو په داسې ډول مؤظف او ویې ویشل چې هېڅکله په عربو کې پخوا تر دې دا ډول نه و شوې.

دا جګړه د هجرت په ۱۳ کال د درېیمې خور د جمادي الاول په ۲۸ نېټه پېښه شوه لومړی ځل د اسلام لښکر په چپه خوا (چې عمرو بن عاص او سرجیل بن حسنه تر اداري لاندې وه) د دښمن یرغل راغی چې دوی یې په شاه وتمبول خو د مسلمانانو د ښي طرف لښکر د یزید بن ابوسفیان په مشرۍ د رومیانو د یرغلونو په مقابل کې خورا ټینګار وکړ، د مسلمانانو د لښکرو زړونه په هغه ځای کې چې خالد ﷺ او ابو عبیده بن جراح ځای نیولی وو، د دښمن د پرله پسې یرغلونو په مقابل کې ټینګار وکړ، کینې طرف مسلمانانو د عربو د ښځو پېغورونو او تشویقونو په اثر د جګړې ډګر ته راغلل او هغه ځای چې پخوا دښمن ترې لاندې کړی وو، بېرته ترې ونیوه په دغه جګړه کې مسلمانانو خپله مېړانه په خورا شجاعت سره وښودله او د مرګ په نامه به د دښمن په قطارونو ورننوتل او تر هغه وخته پورې به یې جګړه کوله چې ترڅو به یې د شهادت جام وڅښه دلته چې دښمن د مسلمانانو دا فوق العاده مېړانه

وليده حيران شول خپل معنويات يې بايلل، ځينې وتښتېدل او ډېر يې ووژل شول مورخين د دښمن د مړو شمېر يو سل ديرش (۱۳۰) زرو پورې ليکي او د اسلام د لښکرو تلفات يې په دې جګړه کې درې (۳) تنه ښودلي دي، په دې جګړه کې مهم ټکي چې د خلکو کتنې راجلبوي دا دي چې په مسلمانانو کې يووالی وه، نفاق او ددوه رنګي پکې نه لېدل کېده، هېڅ ځانګړی شهرت او نامتو والی نه غوښت د منصب او شخصي لوړوالي لپاره يې کار نه کاوه، بلکې د دوی هدف د اسلام خدمت و چې ټولو د يوه لوړ مقدس او پاک مقصد لپاره لاسونه سره ورکړي او ديو فرد تر قوماندانۍ لاندې يې په ډېر پاک زړه خدمت کاوه، د مسلمانانو د بري بل سبب د هغوی ټينګار او سرښندنه وه چې په هېڅ ډول له مرګ څخه نه ويرېدل او دا هيله يې درلوده چې د الله جل جلاله په لاره کې شهيدان شي، همدا علت و چې لږو کسانو د ډېرو کسانو مقابله کولای شوه.

وايي پخوا تر جګړې چا خالد رضي الله عنه ته وويل: چې روميان ډېر زيات اوستاسې سپاهيان ډېر لږ دي خالد رضي الله عنه وفرمايل: نه داسې نه ده روميان ډېر کم دي او موږ ډېر زيات يو، د اسلام د قائد له دې خبرو څخه ښکارېده چې ده په خپله پوره ډاډ درلوده او د دښمن د سپاهيانو ډېروالی يې تر نظر هېڅ و، سربېره پر دې د دغې جګړې په فتحه کې د مسلمانانو د ښځو برخه خورا ډېره وه، ځکه کله به چې مسلمانانو کوم وخت ماتې وکړه هغه ښځې به چې د سپاهيانو ترشاه په لوړو لوړو ځايو ناستې وې او د دوی د حال څارنه به يې کوله بيا به راغلې اوخپل مېړونه به يې په ننګ راوستل او بېرته به يې د جګړې په ډګر ورګډ کړل سربېره پردې د مسلمانانو ښځو د مجاهدينو لپاره خواړه برابرول او د مريضانو او زخميانو پالنه به يې کوله او زخمونه به يې ورتړل او دارو به يې کول

د ۍ جګړې د دښمن د تعرض په مقابلې قوه له منځه یوړه او د عربستان د نیولو فکر د رومیانو له مغزو څخه ووت یوازې دومره به یې کول چې له خپلې خاورې څخه دفاع وکړي.

وايي په دې وخت کې هر قل په شام کې وکله چې د خپلو سپاهيانو له ماتې څخه خبر شو په بېړۍ کې کېناست اووتښتېده، د خوځېدو په وخت کې شام ته خطاب وکړ او ویې ویل: ای شامه په الله جل جلاله مې سپارلې یې، ښه پوهېږم چې بیا دې نه شم لیدلای اوس دې کړه وړه د داسې خلکو سره شول چې له مړينې څخه نه ويرېږي.

وايي ديرموک د جګړې په وخت کې له مدينې څخه قاصد راغی او خالدرضي الله عنه ته یې د خليفه د مړینې خبر راوړ خو خالد رضي الله عنه د یو مصلحت لپاره یې دا خبره پټه کړه چې مسلمانان خپل معنويات له لاسه ورنه کړي.

## د ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت په باره کې سیاسي نظر

څرنګه چې ښخوا یې یادونه وشوه چې ابوبکر صدیق رضي الله عنه د عامو خلکو په واسطه د ديموکراسۍ په فضا کې منتخب شو پر يو تعداد لږو خلکو څخه چې هغوی علی رضي الله عنه د خلافت مستحق ګڼله نورو هېڅا په دې باره کې مخالفت ونه کړ، خو وروسته بیا هم دغو خلکو په ډېر افتخار سره بیعت وکړ، د هغه ذاتي صفاتو له کبله چې ابوبکر رضي الله عنه درلوده همېشه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ملګری او د الله جل جلاله په رضا قانع و اګر چې ابوبکر صدیق رضي الله عنه، عمر بن خطاب رضي الله عنه او ابوعبیده بن جراح د خلافت لپاره کاندید او نامزد کړي وه، مګر عمر پرته له تامل څخه ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته بیعت ورکړ او هم یې نورو خلکو ته امر ورکړ چې بیعت وکړئ بېشکه

نبي كريمﷺ د ديني امورو په هكله د ابوبكر صديقؓ څخه راضي وه، ولې موږ د ابوبكر صديقؓ د دنيوي امورو په هكله راضي نشو؟
دابوبكر صديقؓ سياست همېش لپاره د خلافت په كارونو او امورو كې د عامو مسلمانانو په مشوره باندې قايم وه، هېڅ يوې طايفې او يو قوم ته د قضاوت په وخت كې په امتياز او تبعيض قانع نه وه ځكه چې د هغه په نظر ټول مسلمانان مساوي او هېڅ فرق يې نه درلوده، ابوبكر صديقؓ يو متواضع او زاهد سړى و، د مملكت وسعت او د هغه جاه او جلال د هغه په عباداتو او تقوى باندې كومه اغېزه ونه كړه او نه يې كوله، څرنګه چې شاوخوا يعنې ګاونډې هېوادونه يې په جبر او تكبر كې غرق و د دنيا نعمتونه او د دنيا زيب او زينت ده ته كوم ارزښت نه درلوده، بلكې د ده رفتار له خلكو سره ساده عريب و،ابوبكر صديقؓ تل لپاره د خلكو مشكل حل كوونكى او نيكې رسوونكى و، همېشه عفوه كوونكى و او د خپل حكم څخه تېرېدونكى شخصيت و د مجرمينو په مقابل كې په دې اميد چې اصلاح شي د دنيا د مال او متاع څخه يې پرهېز كاوه ځكه دى معتقد و، هغه څه چې د الله جل جلاله په نزد باقي او دايم دي هغه ايمان دى، هرڅوک چې د يو ملت (قوم) ولې وټاكل شي هغه ته نه ښايې چې د خلكو له منافعو څخه بده استفاده وكړي ابوبكر صديقؓ د خلافت په ابتداء كې خپل سياست په دې ډول واضح او بيان كړ:

زه د ستاسو ولې (مشر) وټاكلى شوم، له تاسو څخه بهتر نه يم كه چېرې ما ښه كار وكړ تاسې له ماسره كومک وكړئ او كه چېرته ما بد كار وكړ ما د هغه كار څخه منعه كړئ دا يو پوره دليل دى، چې مسلمانانو ته يې د خپل اعمالو په باره كې د انتقاد او اعتراض اجازه وركړه او هم يې خلكو ته په خپلو تصرفاتو كې كې اجازه وركړه ترڅو د ده سره محاسبه وكړي،

په دې شرط چې دا محاسبه او انتقاد د اسلامي شرایطو مطابق او برابر وي، د ابوبکر صدیق رضي الله عنه پورتني سیاست خلک دې ته اړ کړل چې د دیموکراسۍ په فضا کې او د عدالت په اجتماع کې خپل ژوند تېر کړي، مګر د الله جل جلاله د کتاب د احکامو او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طریقو په تطبیق کې له هرڅه څخه زیات حریص وو.

دابوبکر صدیق رضي الله عنه د مالي چارو په هکله هم د هغه سیاست معلوم او ښکاره دی، ابوبکر صدیق رضي الله عنه دا سیاست د ټولو نواقصو څخه منزه او بې الایشه روش درلوده ابوبکر صدیق رضي الله عنه د بیت المال څخه زیات خرچ او د خپل کور د نفقې لپاره یې دیوې معلومې اندازې څخه زیات مصرف نه کاوه، که څه هم ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خلافت په دوره کې هم د نفقې د پیدا کولو په غرض تر شپږو میاشتو پورې د شام او مدینې تجارت کاوه او په دغه تجارت کې به کله پیاده او کله به په اوښ سپور تلو یعنې د تجارت او خلافت دواړه وظیفې یې انجام کولې، بیا یې د عمررضي الله عنه د زیات اسرار په وجه د تجارت له کارونو څخه تېرشو وکړ او د اهل او عیال لپاره یې له بیت المال څخه معاش مقرر کړ د غنیمت د مال د توزیع لپاره په مستحقینو باندې حریص و د فقیرانو او محتاجو خلکو سره یې همېشه کومک کاوه د رسول الله صلی الله علیه وسلم له اعمالو څخه یې هېڅکله سترګې نه پټولې او نه یې د هغه اعمال له یاده ویستل.

## د ابوبکر صدیق رضي الله عنه تهذیب او اداب

ابوبکر صدیق رضي الله عنه له اسلام څخه مخکې څلوېښت[1] کاله په مکه مکرمه کې تېر کړي و په دې منطقه کې ابوبکر صدیق رضي الله عنه د نظم نسق او د جاهلیت د عقایدو سرپرست هم وو او دی یو لایقه او مقبول تجار و او د

---

۱- د محمد اسماعیل ابراهیم لیکنه، تاریخ خلفای راشدین

خپل ژوند په موده کې هغه فرهنګ چې په هغه اجتماع کې مروج و لکه ليکل او لوستل، تعليم او ترييه حکمت او اشعار په دې پورته صفاتو موصوف و، ابوبکرصديق رضي الله عنه نه يوازې په پورته علومو کې ماهر و بلکې د نسبونو په پېژندګلوۍ او ستورو پېژندنو کې هم د پوره مهارت خاوند و، څه وخت چې ابوبکر صديق رضي الله عنه په اسلام مشرف شو په پورتنيو معلوماتو کې نور هم وسعت پيدا کړ د قران کريم په مفهوم او د سنتو په طريقه، عبادت، احکام، تهذيب، برابر او بلکې د ټولو صحابه کرامو څخه د محمد ﷺ د رسالت په باره کې ډېر پوره او دقيق تر شخصيت و د ابوبکر صديق رضي الله عنه لپاره همدا کافي او بس دی، چې (معلم او استاد يې نبي کريم ﷺ) و چې ابوبکر صديق رضي الله عنه د تقوی او هدايت خواته برابر کړ، ابوبکر صديق رضي الله عنه په فصاحت او بلاغت سره همېشه داسې خطبه وړاندې کوله فرمايلی: چې ای مسلمانانو! له الله جل جلاله سره قرابت ترغيب او رغبت د ثواب د کارونو په اميد او د الله جل جلاله له عذاب څخه ويرېدل او د محمد ﷺ سنت خاص امتيا زلري.

ابوبکر صديق رضي الله عنه د انصارو په باره کې داسې خطبه ايراد کړه: ای خلکو موږ مهاجرين د اسلام له پلوه لومړی دنسب له لحاظه ستر او د قرابت له اړخه رسول اکرم ﷺ ته نږدې يو، الله جل جلاله فرمايلي دي:

﴿وَ السّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَ الْاَنْصَارِ وَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ﴾

ژباړه: ابوبکر صديق رضي الله عنه وفرمايل: موږ مهاجرين او تاسې زموږ انصار ورونه له موږ سره په دين کې يو او له موږ سره په بيت المال کې شريک او د دښمن په مقابل کې زموږ همکاران يئ تاسې موږ ته پناه راکړې او له موږ سره يووالی او وروګلوۍ وکړئ پس الله جل جلاله ستاسې ته جزاء د خير

درکوي. زه امير يم او تاسې وزير مګر عرب يې نه قبلوي يوازينی ستاسې قبيله قريش ده چې قبلوي، پس تاسې حسدونه کړئ په هغه څه چې د الله جل جلاله له طرفه په مهاجرينو ورونو عنايت شوی دی.

نوموړي خطبه دابوبکر صديق رضي الله عنه په فصاحت او بلاغت باندې دلالت کوي، ځکه چې د انصارو د خلافت مدعيان يې بې د کوم بغض او حسد څخه قانع کړل.

دابوبکر صديق رضي الله عنه له نفس څخه هېڅکله داسې ځواب نه صادرېده چې هغه به دايمان په رڼا روښانه نه و، ابوبکر صديق رضي الله عنه به همېشه د هغو کسانو په باره کې مدحه اوثنا به يې د ابوبکر ويله فرمايل به يې:

ای الله جل جلاله ! ته له خلکو څخه ما ښه پېژنې ای الله ! د هغه څه په باره کې چې خلک يې زما په حق کې ګمان کوي ما له هغه څخه لابهتر کړې ای الله جل جلاله! موږ وبخښه په هغه څه چې موږ نه پوهېږو او خلک يې زموږ په حق کې وايي، الله جل جلاله! په هغه موږ ونه نيسې.

ابوبکر صديق رضي الله عنه همېشه په نرمه لهجه وعظ او نصيحت کاوه او له خپل نفس سره به يې عملي مثال ورکاوه، خپل سياست اوپاليسي د خلافت د ټولو چارو په هکله ښکاره کوله، ترڅو خلک د دې له عمل څخه عملي پېروي وکړي يو د دغه مثالونو څخه هغه مثال دی چې عمر ته يې وصيت کاوه او ويل: ای عمره! زه تا د خپل ځان څخه وروسته [١] جانشين انتخابوم او تا ته د الله جل جلاله دوري وصيت کوم چې بېشکه الله جل جلاله د شپې اعمال په ورځ کې او د ورځې اعمال په شپه کې نه قبلوي الله جل جلاله عبادت تر هغه وخته نه قبلوي ترڅو چې فرض انجام نه کړي د قيامت پر ورځ تله د هغه چا درنده وي چې له حق څخه مشبوع وي او څوک چې د باطل

---

١ د محمد اسماعيل ابراهيم لکينه، تاريخ خلفاء راشدين ۴۰-۴۱

پیروي کوي د هغه تله به سپکه وي، په هغه ترازو کې چې حق وي باید دروندوالی ولري او په هغه تله کې چې باطل وي باید سپک وي ويې وفرمایل: څه وخت چې الله جَلَّ جَلَالُهُ د جنت له خاوندانو سره د نیکو اعمالو په هکله پوښتنه کوي زه ویرېږم امکان لري چې زه به د دوی په جمله کې نه یم او کله الله جَلَّ جَلَالُهُ د دوزخ د خاوندانو بد اعمال رایادوي او د نیکو اعمالو څخه هیڅ نه یادوي، زه وایم زه شاید د دوی له جملې څخه یم او سم الله جَلَّ جَلَالُهُ د همېش لپاره رحمت د ایت سره د عذاب ایت ذکر کوي، ترڅو بنده د دواړو ډار او رغبت په زړه کې ولري، ترڅو د حق امید وار او له هلاکت څخه ځان وژغوري. څه وخت چې تا زما نصیحت یادکړپه دنیا کې هیڅ شی ستا لپاره له مرګ څخه دوست نشته او که چېرته زما وصیت دې هیر کړ هیڅ شی ستا لپاره بې له مرګ څخه تریخ نشته، د ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لخوا عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت لپاره تعین شو کله چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له کورڅخه ووت، ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل دواړه لاسونه د اسمان خواته پورته کړل او ویې فرمایل:

ای الله جَلَّ جَلَالُهُ! ما عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وصیت وکړ، هیڅ اراده مې پرته له اصلاح څخه نوره نه درلوده او زه د فتنو څخه ویرېږم او په هغه څه مې عمل وکړ چې په هغې ته ښه پوهېږې او ما اجتهاد وکړ د مؤمنانو ډېر ښه او پیاوړی مې په خلافت تعین کړ،ای الله! دا ستا بنده ګان دي او د دوی واک او اختیار ستا په لاس کې دی.

ای الله! خلیفه او حاکم ته اصلاح کړه او دوی د خلفایوو راشدینو ځینې حساب کړي. امین

**د راشده خلفاوو له اسلامي فتوحاتو څخه هدف:**

د اسلام د راتګ سره په جزیرة العرب کې دوه ستر طاقتونه (فارس او روم) واقع و او د اسلام حقیقي دفاع کوونکو په لږه موده کې وکولای شول،

چې دغه مظلوم ملتونه د ظلم، وحشت او بربريت څخه خلاص کړي او د اسلام په حقيقت يې وپوهوي. دغه دفاع کوونکو هيڅ نوعه تمه د مال او غنيمت او حاکميت په نورو ملتونو اويا نور ملتونه د استعمار او غلامۍ په حلقو کې راګير کړي نه درلوده، بلکې يوازې د دغه مظلومو ملتونو نه د خلاصون په غرض او ددوی د طبعي حقوقو د دفاع په خاطر ځانونه قرباني کول که چېرته اوس هم مسلمانان د اسلام په واقعې حقيقت وپوهېږي او نور ملتونه هم په حقيقت پوه کړي په دې کې هيڅ شک نشته چې نن ورځ به هم د فرعونيت دور ختم او د عدالت، انصاف، برابرۍ او د ورورۍ اصول به نافذ او يو به د بل غلامۍ څخه نجات ومومي، لکه څرنګه چې تېرو وختونو کې د دولتونو سياست او پاليسي د نورو دولتونو توهين، ظلم او نابودي وه او بالمقابل په مسلمانانو کې داسې يوه غښتلي انګيزه چې هغه عبارت د اسلام د نشر او اشاعت او د الله جل جلاله له غوره او حق دين ، چې يو کلک د عدالت او امنيت او ازادۍ نظام جوړ کړي چې د علم او هدايت رهبري کوونکي دي، چې د اسلام دښمنان د هغه بد تصويرونه کړي، چې دا قرباني د مال غنيمت او سرمايي سبب ونه ګرځي.

بلکې د اسلام د نشر او اشاعت سبب شي، يعنې هغه ممالک چې فتحه شوي دي اسلام پکې حاکم وګرځي، لکه څرنګه چې فارس نږدې همسايه او په ډېر ظلم او بدبختۍ مبتلا وو، چې هغه هم له ظلم څخه خلاص او د اسلام د دين او په مذهبي اساساتو مستحکم او ازاد شو څرنګه هم دا حال د شام او مصر هم و.

که چېرته اوس هم مسلمانان د الله جل جلاله د دين د حاکميت او په نړۍ کې يوازې د بشريت د ازادۍ په منظور په جهاد پيل وکړي پرته د کوم شک څخه به ټول ستر طاقتونه لکه امريکايان، روسيان او داسې نور د

بشريت د ښکېل کولو دوستان محوه او نابود شي او ملتونه به يو ځل بيا د خپل طبعي او ذاتي قوانينو پيروي وکړي او انسان به د انسان له غلامۍ څخه نجات ومومي څرنګه چې تېرو دورو کې دا امتحان راشده خلفاوو جهان ته ورکړی دی او په تاريخونو کې واضحه او ښکاره مثالونه شته.

**د ابوبکر صديق رضي الله عنه وفات:**

د ام المومنين بې بې عايشې رضي الله عنها څخه روايت دی، چې د ابوبکر صديق رضي الله عنه لومړنۍ ناروغي دارنګه تشريح کوي، وايي يوه ورځ ابوبکر صديق رضي الله عنه په زياته يخنۍ کې ولمبل چې له لمبلو څخه وروسته تبې ونيو، چې د دې تبې د زيات شدت په واسطه ونشو کولای چې پنځلس ورځې د لمانځه د اداء کولو لپاره مسجد ته تشريف يوسي. نو بيا يې عمر رضي الله عنه ته امر وکړ چې د امامت چارې پرمخ بوځي، ابوبکر صديق رضي الله عنه په دې ناروغۍ کې دا احساس کړه چې مرګ ته رانږدې شوی يم، مګر هغه څه چې د ابوبکرصديق رضي الله عنه د ناروغۍ په حالت کې درک کړل هغه د مسلمانانو د ارتداد په هکله وو، لکه چې د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له رحلت څخه وروسته واقع شوې وه.

دويم د هغو اختلافاتو په ياد راوړل چې د محمد صلی الله علیه وسلم له وفات څخه وروسته راپيدا شوې و، نو په همدې سبب ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت لپاره عمر رضي الله عنه په خپل ژوند خليفه تعين کړ يا دا چې د انصارو او مهاجرينو ترمنځ اختلاف پيدا نشي، يوه ورځ ابوبکر صديق رضي الله عنه د بام په سر وخوت او ميرمن بې بې اسماء بنت عميس يې شاته ولاړه وه او ابوبکر صديق رضي الله عنه ورته تکيه کړې وه او د مسجد حاضرينو ته يې خطاب وکړ او ويې وفرمايل:

ايا تاسې له ماسره موافق او راضي ياستئ، چې زه څوک د خلافت لپاره

تعين کړم؟ قسم پر الله جل جلاله چې زه هيڅ د اظهار نظر بهتر والی پر تاسو نه لرم او هم به هيڅوک د خپلو نږدې خپلوانو او اقاربو څخه تعين نه کړم ما د زيات دقت او تحقيق وروسته عمر رضي الله عنه د ټولو صحابو له مشورې څخه وروسته خپل نظر په پوره اطمنان سره څرګند کړ او ابوبکر صديق رضي الله عنه پوه شو، چې ټول خلک په دې راضي دي، ابوبکر صديق رضي الله عنه د هجرت په ۱۳کال چې د شپږ سوه څلوېښتم (۶۴۰) ميلادي کال د اګست د مياشتې د ۲۲ سره برابرېږي، بې بې اسماء بنت عميس او زوی عبدالرحمن ورته غسل ورکړ او هغه تخته باندې چې د محمد صلی الله علیه وسلم جنازه نقل شوې وه دا هم نقل شو او د محمد صلی الله علیه وسلم د قبر په خوا کې چې قبر کېندل شوی وو، د ماښام لخوا دفن شو د ابوبکر صديق رضي الله عنه په دې وخت سپين ږيری[1] پلار يې ژوندی وه، کله چې ابوبکر صديق رضي الله عنه وفات شو د مدينې په خلکو يو ځل بيا د محمد صلی الله علیه وسلم د وفات په شان يو لوی غم راغی او د زيات خپګان سره مخامخ شول د محمد صلی الله علیه وسلم د وفات د ورځې په شان علي بن ابی طالب په ډېره چالاکۍ د ژړا په حالت کې راغی او د ابوبکر رضي الله عنه په قبر ودريد او داسې يې وويل:

الله جل جلاله دې په تا باندې رحم وکړي ای ابوبکره! تاسو په ټولو کې د اسلام او ايمان له حيثه لومړنی او له ټولو څخه مخلص يې د ستا يقين او عقيده له ټولو څخه ډېره پورته وه، ستا تقوا او پرهېزګاري له ټولو څخه زياته وه، د محمد صلی الله علیه وسلم په دوستۍ ساتلو کې له ټولو څخخه زيات حريص وې، د اسلام او د اسلام له خاوندانو څخه تا همېشه حمايت کاوه، د اخلاقو، قضاوت او رهنمايي له حيثه تا له محمد صلی الله علیه وسلم سره ډېر نژدې شباهت درلوده الله جل جلاله دې تا ته د اسلام، رسول الله او مؤمنانو په خاطر

---

۱- ابوقحافه عثمان، د محمد اسماعيل ليکنه

د خير جزاء درکړي تا د محمد ﷺ پيغمبري تصديق کړې وه، په هغه وخت کې چې مشرکانو د پيغمبر د خبرو تکذيب کاوه، تا يې تصديق او پلوي کوله په هغه زمانه کې خلکو د اسلام د راوړلو په وجه بخل کاوه خو تا قيام وکړ، په هغه زمانه کې خلکو لنډ نظري درلوده تا ته الله جل جلاله صديق۱ نوم درکړ ته د اسلام لپاره يوه محکمه کلا وې، ته د کفارو محوه کېدو لپاره يو ستر عامل وې د ستا دليل د کفارو په مقابل کې هېڅ کوږ او بې لارې نه وو، ته هېڅ وخت د حق لپاره بې زړه او بې جرئته نه وې، ته د غر په شان وې، چې هېڅ ناوړه حرکت ستا په اراده او عزم کې خنډ نشو راوستلای ته په هغه ډول وې، لکه څرنګه چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: اې ابوبکره! ته په وجود کې ضعيف يې خو په خپل دين کې ډېر قوي يې ته په خپل نفس ښه حاکم او عاجز يې خو د الله جل جلاله په نزد ډېر لوی او د اسماني مزاج خاوند وې،د ځمکې پرمخ د خلکو په منځ کې د ستر مقام خاوند وې، هېچا ته تا تمه او توقع نه درلوده ضعيف ستا په نزد قوي و، او قوي ستا په نزد ضعيف و حتی د ضعيف حق تا همېشه له قوي څخه اخيسته او په خاوند دې سپارلو.

الله جل جلاله دې موږ د ستا د اجر څخه محروم نه کړي او وروسته له تا دې الله جل جلاله موږ ګمراه نه کړي، همدارنګه د عمربن خطاب رضي الله عنه ژبه د ډېر غم په سبب تړل شوې وه، يوازې په مختصر ډول يې وويل: اې د رسول الله صلی الله عليه وسلم خليفه ښېښکه تا وروسته د خپل ځان څخه د اسلام خواته مکلف کړل امکان نه لري، چې څوک ستا د پښو ګرد او غبار ته ورسېږي څرنګه خلک کولی شي چې له تا سره ملحق شي.

دابوبکر صديق رضي الله عنه وفات د محمد ﷺ له وفات څخه وروسته په مدينه او

۱- والذی جا د بالصدیق وصدق به.

د هغې په اطرافو کې ډېره غمجنه فضا رامنځ ته کړه د ابوبکر پلار ابو قحافه د ابوبکر صديق رضي الله عنه له مړيني شخه شپږ مياشتې وروسته وفات شو د عمر رضي الله عنه له وينا شخه وروسته بي بي عايشه رضي الله عنها د پلار په مرګ ډېر غمجنه او زيات يې ژړل، خپل پلار ته يې د جدايي په حال کې وويل:

الله جل جلاله دې ستا شکل خوشحاله کړي تا دنيا ذليله پېژندله چې تا ورته سپک کتل او په کوم اهميت ورته قانع نه وي او اخرت دې محترم پېژندله، چې اخرت ته دې مخ اړولی و، بېشکه د محمد ﷺ له وفات شخه وروسته ستا مرګ يو لوی مصيبت او غم دی، بېشکه الله جل جلاله جل جلاله د صبر په مقابل کې د نيکي جزا وعده کړې ده زه د الله جل جلاله شخه اميد لرم چې ما ته د صبر په مقابل کې د خير جزاء راکړي زه د الله جل جلاله شخه د ډېرې بخښنې مرسته غواړم، سلام پرتا ای ابوبکره! ته وداع کوونکی يې. مور باید ستا کار نامې هيرې نه کړو، له ابوهريرة رضي الله عنه شخه روايت دی، چې د ابوبکر صديق رضي الله عنه سره د محمد ﷺ دمينې او محبت په واسطه ښکاره مثال دی، وايي چې محمد ﷺ فرمايلي دي.

وايي چې د هرچا قرض پر ما باندې و هغه مې اداء کړ مګر د ابوبکر دصديق قرض به الله جل جلاله د قيات په ورځ اداء کوي، د ابوبکر صديق رضي الله عنه د مال نفعه او ګټه چې ماته رارسېدلې ده د هيچا د مال فايده ماته نه ده رارسېدلې که چېرته ما شوک دوست خوا کې نيولی هغه به البته ابوبکر صديق رضي الله عنه وي، بېشکه ستاسې ملګری او دوست الله جل جلاله دی.

**د ابوبکر صديق رضي الله عنه عظمت او سترتوب:**

تاريخ څرګند دی، چې ابوبکر صديق رضي الله عنه د قوي نفس او قوي روحيې خاوند و، چې په ايمان کې عزم او شدت پوخ و د مفسدينو او مرتدينو په دښمنۍ کې ډېر تېز او همېشه کلک ولاړ و او همېشه به يې د هغوی په

محوه کولو او نابودۍ ته ټینګار کاوه.

همدارنګه ابوبکر صدیقﷺ ذکي او د عقل غوره نمونه وه، چې په هغه کې عزم او محکم والی موجود و، ابوبکر صدیقﷺ زیات متقي او نهایت پرهېزګار و، عجیبه نه ده، چې د ابوبکر صدیقﷺ مینه او محبت د خپل الله جل جلاله او د نبي کریم ﷺ او د اسلامي امت سره یو ستر دلیل وي.

## دریم فصل

## د عمر بن خطاب رضي الله عنه دوره

## خلافت ۱۳هـ - ۲۳هـ کال پورې

عمر فاروق رضي الله عنه يو جليل القدر صحابي دی، چې په صداقت ايمان او د حق او عدالت په تطبيق کې مشهور و، د جاهليت او هم د اسلام په دورو کې د خلکو ترمنځ يې د رعب او هيبت اچوونکي په نوم مشهور و الله جل جلاله د ايمان په راوړلو عمر رضي الله عنه ته قدر او عزت ورکړ، د اسلام د قبلولو څخه وروسته يې د محمد صلی الله علیه وسلم سره خپله ملګرتيا لازمي وګڼله په ټول قدرت سره يې په ټولو جنګونو کې د محمد صلی الله علیه وسلم ملګرتيا کوله محمد صلی الله علیه وسلم د لور بي بي حفصې سره نکاح وکړه بيا د دغه کار په اساس د عمر رضي الله عنه سره نور هم نږدې شو.

عمر رضي الله عنه له خپل رعيت سره د زهد نيکي او د عدالت شهرت درلوده، نبي کريم صلی الله علیه وسلم د عمر رضي الله عنه د تعريف په باره کې فرمايلي دي:

عمر يو قهرمان انسان دی، چې هېڅوک د ده په شان ډېر ستر کارونه نه شي سرته رسولای محمد صلی الله علیه وسلم په يو حديث[1] شريف کې عمر رضي الله عنه او ابوبکر صديق رضي الله عنه ته اشاره کوي، داسې روايت دی، چې محمد صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي:

ما په خوب کې وليدل چې له کوهي څخه اوبه راوباسم بيا ابوبکر رضي الله عنه راغی او په (کوچنی) بوقعه باندې دوه بوقعې کمې اوبه راويستې الله جل جلاله دې د هغې مغفرت نصيب کړي، وروسته عمر رضي الله عنه راغی يوه لويه بوقعه يې په لاس کې ونيوله د اوبو په ايستلو يې پيل وکړه مګر ما هېڅ داسې قهرمان نه و ليدلی چې د عمر رضي الله عنه په شان داسې ستر کار يې سرته

---

۱- د پورتني حديث روايت په بخاري او مسلم.

رسولی وي، ترڅو چې ټول خلک ماړه (سر اب) شول، مفسرین داسې استنباط کوي، چې د ابوبکر صدیق رضي الله عنه د لږو اوبو د ایستلو څخه مراد د ابوبکر صدیق رضي الله عنه د مودې کموالی دی او د عمر رضي الله عنه د ډېرو اوبو څخه مطلب او مراد د خلافت د عمر اوږدوالی او هم د زیاتو منطقو او هیوادونو فتحه کول او هغوی د اسلام په مبارک دین مشرف کول وو.

عمر رضي الله عنه د ټولو صحابه و د عاداتو او اخلاقو څخه خبر و د هغوی هېڅ عقلي اونفسي خواهشات یې د محمد صلی الله علیه وسلم څخه پټ نه و، په ابوبکر صدیق رضي الله عنه کې نرمي، زهد، امانت، صداقت اخلاص و پېژندلو او په عمر رضي الله عنه کې عدالت، کلکوالی(شدت) او تېزوالی پېژانده.

محمد صلی الله علیه وسلم د عمر رضي الله عنه په باره کې فرمایل: ای عمره! ته په څېر د نوح علیه السلام یې چې ویل به یې:

﴿ وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَٰفِرِينَ دَيَّارًا ﴾

ژباړه: او نوح وویل (( زما ربه! له دغو کافرانو څخه هېڅ یود ځمکې پرمخ استوګن مه پرېږده.

**د عمر رضي الله عنه زېږېدنه او نسب:**

عمر بن خطاب بن نفیل بن عبدالعزی بن رباح چې وروستی نسب یې کعب بن لوئ قریشي ته رسېږي، مخکې د اسلام له قبلولو څخه هم د عزت او شرف خاوند وو.

د پلار له طرفه یې د نسب سلسله د محمد صلی الله علیه وسلم په اووم پشت کې لوی ته او د مور له طرفه د محمد صلی الله علیه وسلم شپږم نیکه کعب ته رسېږي.

د عمر رضي الله عنه اسم کنیه ابوحفص وو، چې قوم دغه لقب عمر رضي الله عنه ته د زیات جرئت او شجاعت په خاطر ورکړی وو.

محمد صلی الله علیه وسلم عمر رضي الله عنه ته د فاروق لقب ورکړی و، ځکه چې عمر رضي الله عنه د زیات

جرئت په اساس د کوم وېرې او ډار حق د باطل څخه جلا کاوه.

عمر رضي الله عنه په ۵۸۴ میلادي کال مخکې د جنګ [1] فجار څخه په مکه مکرمه کې زېږېدلی دی، یعنې د محمد صلی الله علیه وسلم څخه دیارلس کاله کشر دی.

د عمر رضي الله عنه د پلار نوم خطاب او د مور نوم یې ختمه بنت هشام بن مغیره ده او په مکه کې روزل شوی دی په کوچنیتوب کې د خپلو مېږو او پسونو شپون و یعنې مېږې څرولې څه وخت چې زلمی شو د تجارت په کار مشغول او له تجارانو سره ملګری شو خو زیاته سرمایه یې د ابوبکر صدیق رضي الله عنه په شان نه درلوده د جاهلیت په زمانه کې هم د لوړ مقام، شرف، زکاوت او د شان او شوکت خاوند و قوم پر عمر رضي الله عنه زیات اعتماد درلوده، د زیات قوت او صداقت په وجه یې قوم د خپل ځان د دفاع په خاطر دقبیلو جنګونو ته واړلو.

**په اسلام باندې د عمر رضي الله عنه مشرف کېدل.**

عمر رضي الله عنه پنځه کاله د محمد صلی الله علیه وسلم له بعثت څخه وروسته د خپل قوم په دین مشرف او مبتلا و او د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ته په ضرر رسولو ظلم کولو کې له خپل قوم سره ملګری و او په مسلمانانو یې هرډول ظلم جایز ګاڼه. تر دې اندازې چې یوه ورځ دیو عرب۲سره برخود وکړ او عرب ورته د ډېره قهره وویل زه ګورم ته له هغه چا سره چې د محمد صلی الله علیه وسلم په نبوت یې ایمان راوړی دی سخت ګېري کوي او هغوی ته سخته سزا ورکوي.

هغه څوک چې ستا له کورنۍ څخه دی او د محمد صلی الله علیه وسلم په نبوت یې ایمان راوړی دی، سترګې پټوي، ایا ته پوهېږې چې خور (فاطمه) سره د

---

۱ - د فجار جنګ د قریشو هوازن د قبیلو ترمنځ جنګ و چې په دغه جنګ کې محمد صلی الله علیه وسلم هم شرکت درلوده، د سیرة النبي لومړی جلد د مولانا شبلي لیکنه.

۲- نعیم بن عبدالله

خاونده (سعید بن زید) ایمان راوړی دی او یو شمېر مسلمانانو د هغه په کور کې تعلیم ګاه جوړه کړې ده، څه وخت چې عمر رضي الله عنه دا خبره واورېده ډېر غضبناک شو او په ډېره چالاکۍ سره د خپلې خور د کور په لورې روان شو، ترڅو حقیقت ځان ته معلوم کړي کله چې هغه ځای ته ورسید د زیات قهر او غضب په حالت کې د کور دروازه یې ووهله د کور له طرفه اواز ورکړی شو چې څوک یې؟ ده وویل: زه ابن خطاب یم، په دې حالت کې مسلمانان د قران کریم په تعلیم بوخت و څه وخت چې یې د عمر رضي الله عنه اواز واورېده مسلمانان متفرق شول او ځانونه یې په یوه ګوښه ځای کې پټ کړل، د عمر رضي الله عنه خور دروازه خلاصه کړه، عمر رضي الله عنه وویل: ما واورېدل چې د خپل پلار او نیکه دین ته دې تغیر ورکړی دی، د زیات قهر په حالت کې د خپلې خور په وهلو یې اقدام وکړ ترڅو چې له مخ څخه یې وینې جاري شوې خور یې په ژړا او فریاد شروع وکړه او ویې ویل: هو زه مسلمانه شوې یم. هرڅه چې دې زړه غواړي انجام یې کړه، څه وخت چې عمر رضي الله عنه ولیدل چې وینې ورڅخه جارې شوې ډېر خفه او زړه یې د وینو د بهېدلو په واسطه نرم شو.

کومې صحیفې چې د عمر رضي الله عنه د وېرې پټې کړې وې، عمر رضي الله عنه ولیدلې او ویې وویل: دا څه شی دی، ماته یې راکړه، خور یې ځواب ورکړ، چې زه دا تاته نه شم درکولی ځکه چې ته د دې وړ او لایق نه یې، دا نوشتې پاکې اومقدسې دي بې له پاکوالي څخه څوک نه شي کولی چې دا په لاس کې واخلي او یا یې مسحه کړي، عمر رضي الله عنه پاڅېده او غسل یې وکړ او یو د نوشتو د قران ځینې په لاس کې واخیسته او سورة طٰهٰ یې ولوست او ویې ویل دا څرنګه شی او عظیمې خبرې دي له هماغه ځای څخه یې سینه د جهل د تاریکو څخه پاکه شوه او ایمان یې راوړ رڼا یې په چالاکۍ سره په زړه کې ولګرځېده او د اسلام له قبلولو سره یې مینه او

محبت پیدا شو په دې وخت کې د خور میړه(سعید) او نور مسلمانان د عمر رضي الله عنه د هیبت له کبله پټ شوي و ښکاره شو او ویې فرمایل:
الحمدلله او تکبیر یې ولوست یو د هغوی له منځ څخه (جناب بن الارت) وویل: چې ای عمره! په تا باندې زیری وي چې ما د محمد ﷺ څخه اوریدلي دي، چې ویل به یې:
ای الله! اسلام قوي کړې په واسطه یو د دوو عمرو یا عمر[١] ابن هشام (ابوجهل) یا عمر بن خطاب زه امید لرم چې ته به د نبي کریم ﷺ د هغو دعاګانو نتیجه یې. وروسته عمر رضي الله عنه وویل: ما ته راهنمایي وکړې، چې رسول اکرم ﷺ په کوم ځای کې تشریف لري، دوی ورته وویل: رسول اکرم ﷺ د صفا له غره څخه ښکته او د ارقم بن ارقم په کورکې چې اکثره وخت په هماغه ځای کې د خپلو پیروانو سره د اسلام د دین د تعلیم لپاره جمعه کیږي، هلته دې، په دغه وخت کې د مسلمانانو تعداد تقریباً شل٢٠ یا دیرش ٣٠ تنه و عمر رضي الله عنه په چالاکۍ سره د خپل کور په طرف راغی او توره یې راواخیسته او د ارقم د کور په طرف راهي شو، د ارقم کور ته ورسیده او دروازه یې ووهله، یو د اصحابو له جملې څخه راپاڅیده او په یو سوري د دیوال کې ولیدل او بیرته په چالاکۍ سره د محمد ﷺ په طرف وګرځیده او په وارخطایي سره یې وویل: ای رسول الله! دا عمر بن خطاب دی چې توره په لاس او منزل ته راداخلیږي.
حمزه[٢] د محمد ﷺ حقیقي کاکا هم په همدغه مجلس کې ناست و، ویې ویل: پریږده چې عمر راشي که چیرته د خیر په اراده راغلی وي، خو ډیره ښه ده او که چیرته په بده اراده راغلی وي په خپله توره یې وژنم، څه

---

١ - ابوجهل درې نومونه ذکر شوي دي، ابوجهل، عمر ابن هشام او ابوالحکم.
٢ - د محمد اسماعیل ابراهیم لیکنه ٥١

وخت چې عمر رضي الله عنه داخل شو، محمد ﷺ خپل ځای څخه راپاڅېد[1] او یې یې له څادر څخه ونیوه په سختئ سره یې د خپل ځان په طرف کش کړ او ویې ویل: ای عمره! څنګه دلته راغلی یې؟

عمر رضي الله عنه ځواب ورکړ او ویې ویل: چې راغلی یم ایمان راوړم، په الله جل جلاله او په رسول ﷺ او په هغه څه چې تا د الله ﷺ له حضوره راوړي دي څرنګه چې دا خبره محمد ﷺ واورېده له لوړ اواز سره یې تکبیر وویلو چې ترڅو خلک پوه شي چې عمر رضي الله عنه ایمان راوړو په دې وخت کې عمر رضي الله عنه شپږ ویشت (٢٦) کلن و وروسته د ایمان له راوړلو څخه د ابوجهل مخې ته ورغی چې دمسلمانانو و سرسخت دښمن او ورته یې وویل: چې ای ابوجهله! ما ایمان راوړی دی، ابوجهل ډېر په قهر شو او له عمر رضي الله عنه څخه یې مخ واړوه مګر په عمر رضي الله عنه باندې هېڅ واهمه رانه غله او نه یې غوښتل چې د نورو مسلمانانو په شان ایمان راوړل پټ وساتي او نبي کریم ﷺ ته یې وویل: چې ولې ایمان راوړل پټ وساتم سره د دې چې موږ په حقه یو او دوی په باطل دین دي.

محمد ﷺ ورته وویل: چې زموږ شمېر اوس ډېر کم دی او تا د مشرکینو ظلم پخپله په مسلمانانو باندې لیدلی دی، عمر رضي الله عنه وویل: قسم په هغه ذات چې ته یې په حقه مبعوث کړی یې، چې ما کوم وخت د جاهلیت په زمانه کې د کفارو په مجلس کې شرکت کاوه، چې د اسلام په وخت کې هم ګډون پکې وکړم، بیا وروسته محمد ﷺ د دوو صفونو په شان د مسجد حرام خواته د نورو مسلمانانو سره یوځای روان شول، یو خواته په یو صف کې حمزه رضي الله عنه او په بل صف کې عمر رضي الله عنه و، څه وخت چې

---

١- په بل روایت کې حضرت محمد ﷺ عمر رضي الله عنه څخه ونیو خلفاء راشدین.

مسجد ته داخل شو او کفارو دوه صفونه د حمزه رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه ولیدل زړونه يې ولويدل او د زيات تاثير لاندې راغلل محمد ﷺ د هماغې ورځې څخه د عمر رضي الله عنه نوم يې فاروق کېښود، د دې لپاره چې اسلام ظاهره کړ او باطل سره جلا کړ.

**د عمر رضي الله عنه خصوصي اوصاف:**

عمر رضي الله عنه د لوړې ونې خاوند و، چې په لاره به پياده تلو داسې معلومېده چې په څه شي سپور وي، قوي وجود ښتن او له چا سره په مقابله کې غالب و، د نيمايي سر ويښتان رژېدلي و، رخسار يې نرم او غنم رنګه په دواړو لاسونو يې کار کاوه، د کفارو په مقابل کې بيم ناک او باجرئته و د حق په ښکاره کولو کې د ملامتيا څخه نه ويريده.

بلال بن رباح د عمر رضي الله عنه له خدمتګار څخه پوښتنه وکړه چې ترعمر رضي الله عنه په کومو صفاتو پېژنې، ويې ويل: له خلکو څخه د نيک نيت لرونکې دی، مګر هر وخت چې په قهر شي د الله جل جلاله څخه زيات ويرېږي، کله چې راتلونکي په باب متوجه شي نو ژر ژاړي.

**د عمر رضي الله عنه ځانګړې صفات په لاندې ډول دي:**

فکر او عقل يې ډېر تيز صادق او صحيح و د کارونو په درک کولو او دشيانوپه اندازه کولو کې هېڅکله نه خطا کېده.

دعمر رضي الله عنه د نيکو صفتونو په هکله يوه وينځه دارنګه تعريف کوي، کله به يې چې له چاسره خبرې کولې په ډېر فصاحت سره به يې کولې، د خلکو خبرې به يې هم په دقت سره اورېدلې په لاره به يې په سرعت رفتار کاوه، کله به چې يو مجلس ته حاضر شو، مجلس به يې د تاثير لاندې راوست، همدارنګه «بي بي ام ايمن» د محمد ﷺ رضاعي مور بي بي امني خدمتګاره او د محمد ﷺ پالونکې او روزونکې وه، ويې ويل: کله

چې عمر رضي الله عنه شهید شو اسلام ضعیف١ شو، عمر رضي الله عنه د اداري امورو اجراء او د شرعي احکامو په تطبیق ډېر وېره وونکی وو، عمر رضي الله عنه د هرڅه په باب ښه تشخیص کاوه. محمد ﷺ د عمر رضي الله عنه د ډار او هیبت په هکله فرمایلي دي.

په کومه لاره به چې عمر رضي الله عنه قدم اخیستي وه، شیطان په هغه لاره نه راتلو، د عمر رضي الله عنه ظاهري مشهور صفات په لاندې ډول ذکر شوي دي:

اخلاق او رویه یې د ازادو خلکو په شان وو، په مثال د صحرا ګرځېدونکو یعنې ازاد او بې تکلیفه شخص وو، همېشه مسکی، خندا کوونکی او خوشحاله و په محبت او عدالت کې د عادل په نامه مشهور و عجیبه نه ده، چې د عدالت روح د ده په نفس کې داخل شوی وي، ولې عمر رضي الله عنه د سلاله د بني عدي له قبیلي څخه و ترېخوالی ظلم د خپلو اقاربو او له قوم څخه ورته په میراث پاتې و د اسلام په دور کې بیایې له ظلم څخه کرکه او نفرت کاوه.

د محبت او عدل سره چې سروکار درلوده او بیایي په کلونو( د ده په ژوند کې ) د ده په زړه کې ځای نیولی و، وروسته بیا د د عدل او انصاف سره عادت پیدا کړو او بیا وروسته د د اولاد ته په میراث پاتې شو. عمر رضي الله عنه په خپل ژوند کې د عمل او قول یوه غوره نمونه وه هغه څه چې دعمر فاروق رضي الله عنه قناعت و، هغه د دنیا د خواهشاتو او اسبابو د زینت او زیب څخه پورته وو، ( یعنې د دنیا شیان د د په نزد هېڅ وو) په زهد او تقوا کې ضرب المثل و. په پوره اندازه د جاه او جلال مخالف وو د فتوحاتو وسعت د بیت المال او ثروت کنترول او دا ډول یې د خلافت

١- د عمر د احد په غزا کې ٢١ زخمونه د نېزې په واسطه خوړلي و، سیرة النبي د ذبیح الله منصوري ژباړه صفحه ٢٨٦

نور امور تر خپل نظارت لاندې ساتل ژوند یې ډېر ساده او فامیل مصرف یې له بیت المال څخه په دومره اندازه تعین کړی و، چې د کور لپاره یې هم کفایت نه کاوه.
په ډېر تواضع سره یې ژوند کاوه، لباس او شرعي حجاب ته ډېر زیات قانع و، د عذا په نشتوالي او همېشه په کمه غذا قناعت درلوده، ځینې مؤرخین د زیات اقتصاد د کنټرول په هکله وایي: تر داسې اندازې پورې چې د به په کوم ځای کې د ازدواج [1] کولو غوښتنه وکړه نو خلکو به له د سره د واده کولو څخه پرهیز کاوه، مؤرخین د عمر رضي الله عنه د عدل، انصاف د میلیت ډیموکراسی او رعیت باندې د شفقت ، امنیت [2] او د صلحي په هکله ډېر روایتونه رانقل کړي دي، چې د تعجب وړ دي، د عمر رضي الله عنه لوړ شخصیت او حکیمانه سیاست او په خپل نفس باندې د حاکمیت د درلودلو په هکله خلک داسې پوهېدل چې وایي: د روم پاچا د عمر رضي الله عنه شان او شوکت او د هغه د هیبت په هکله چې اورېدلي و، یوه ورځ یې یو قاصد چې د روم پاچا ډېر اعتمادي و، د عمر رضي الله عنه د احوال لپاره د مدینې په لور ولېږه چې ترڅو د عمر رضي الله عنه د اعمالو او د شان او شوکت څخه په پوره ډول خبر شي او له هغه څخه چې عمر رضي الله عنه استفاده کوي د ته بشپړه اطلاع ورکړي او بیا پرې حمله وکړي او د هغه دبدبه، شان او شوکت، صفتونه او نعمتونه له نږدې څخه وګوري څه وخت چې د روم قاصد مدینې ته ورسید د مدینې له خلکو څخه یې پوښتنه وکړه، چې دستاسو پادشاه چېرې دربار لري، د مدینې خلکو ځواب ورکړ، چې موږ پاچا نه لرو، بلې! موږ امیرارو چې زموږ د کارونو او امورو مشر دی، بیا

1 - محمد اسماعیل ابراهیم تاریخ خلفای الراشدین (٥٣)
2 - عمر رضي الله عنه توله شپه د رعیت د امنیت په خاطر بیدار و

قاصد پوښتنه وکړه، چې چېرته به يې زه وګورم د مدينې خلکو ورته وويل چې هغه د مدينې څخه وتلی دی، ترڅو چې هغه ځای ته نږدې ورسيد ويې ليدل چې عمر پرځمکه او په تودو شګو کې څادر يې خپل سرته تکيه کړي او خوله يې پر مخ بهېږي او ويده دی او هېڅ پهره دار هم وجود نه لري څه وخت چې قاصد عمر رضی الله عنه په داسې حال کې وليد، نو زيات په تعجب کې شوو قاصد هغه ځای ته تعجب ونه کړ بلکې هغه څه چې د قاصد د تعجب وړ وګرځېده هغه د عمر رضی الله عنه تواضع وه، قاصد په خپل زړه کې ووېل: دا شخص دی چې پادشاهان د ده د خوف او هېبت له وجهې په خپل دربار کې قرار او ارام نه شي کېناستلی دغه حالت دی چې زه يې له نږدې څخه مشاهده کوم.

امکان لري چې پخوا له دې څخه ما دغه واقعه تصديق کړې نه وای خو ای عمره! تا عدل کړی دی، چې په امن او ارامی سره خوب کوې. زموږ بادشاهانو تکبر او ظلم کړی دی چې سره د زياتو پهره دارانو بيا هم د دښمن څخه په ويره او ډار کې ژوند کوي او جرئت نه لري، چې بې د پهره دارانو څخه بهر ووځي. عمر رضی الله عنه د يوې پاکې اوشفافي روحې خاوند و، دغه لاندې واقعه[1] د دې امر صحيح دليل دی، يوه ورځ عمر رضی الله عنه د مدينې په مسجد کې د جمعې خطبه لوستله د دې خطبې په منځ کې يې يوه لږه اندازه توقف وکړ او بيايې وروسته په لوړ اواز سره ووېل: يا سارية الجبل يعنې يا ساريه [2] د غره په طرف پناه يوسئ لمونځ کوونکي په دې اواز چندان پوه نه شول، بيا د لمانځه څخه وروسته علي رضی الله عنه له عمر رضی الله عنه څخه د دغه ماجرا پوښتنه وکړه عمر رضی الله عنه ووېل: د

---

١ - د مولوي محمد ذاکر حسيني ترجمه.

٢ - د مسلمانانو د لښکر قومندان و.

خطبې په منځ کې ما احساس کړه چې نږدې وه چې د مسلمانانو لښکر د کفارو د لښکر په واسطه محاصره شي، چې ساریه بن حصین و ما اواز وکړو چې د دښمن له رسیدو څخه مخکې ځانونه د غره پلوه ته ورسوئ، څه وخت چې ساریه بېرته مدینې ته راورسید ویې ویل چې د عمر اواز موږ واورېد، چې د عمر رضی الله عنه د اواز پر واسطه د دښمن له حملې او چل څخه موږ کامیاب شو.

دا واقعه هېڅ د تعجب وړ نه ده، ځکه چې عمر رضی الله عنه ډېر صداقت او اخلاص د الله جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ سره درلود، نو په همدې سبب د الهي الهام او پاک نفس او بزرګۍ خاوند و، د اسلام د قبلولو څخه وروسته بیا هېڅ وخت له کفارو څخه نه ویرېده بلکې همېشه به کعبې ته د عبادت کولو لپاره په علني توګه تلو او هلته به یې عبادت کاوه، په داسې حال کې چې نور مسلمانان به د مکې غرونو او درو ته تلل او هتله به یې عبادت کاوه او د کفارو له ازیت څخه به یې ځان ژغوره، کله چې عمر رضی الله عنه له مکې څخه مدینې منورې ته هجرت کاوه، د نورو مسلمانانو په ډول یې مخفي هجرت ونه کړ، بلکې خپل سپر او توره یې په اوږه کېښوده او د بیت الحرام په طرف لاړ او طواف یې وکړ او د ابراهیم علیه السلام په مقام کې یې بې تشویشه لمونځ ادا کړ او بیا یې د مشرکینو او کفارو په مقابل کې په جګ اواز سره وویل: زه له مکې څخه مدینې (یثرب) ته هجرت کوم، هرهغه څوک چې غواړي مور یې پرې ژړا وکړي او ښځه یې کونډه او اولاد یې یتیمان پاتې شي، د دغه وادې شاته دې زما سره مقابله وکړي. هېچا دا جرئت ونه کړ او بیا د مدینې په لور رهي شو.

**دعمر رضی الله عنه صحبت د نبي کریم ﷺ سره او د هغې اثرات:**

عمر رضی الله عنه دمحمد ﷺ یو جلیل القدر، تکړه او برجسته صحابي و، چې د

دوستۍ او ملګرتوب په هکله همېش وفادار او ټينګ و، د عمر ﷛ سره په ټولو مصالحو او هم په غزواتو کې ملګرى و، د محمد ﷺ په اکثرو کارونو کې د عمر ﷛ سره مشوره کوله او د ده رايې ته به يې زياته ترجيح ورکوله، محمد ﷺ پوهېده چې عمر ﷛ د کامل عقل او د ښه زکاوت او روښانه فکر خاوند دى، ډېر شواهد په دې دلالت کوي، چې عمر ﷛ ته په ځينو کارونو کې الهام [١] کېده، د عمر ﷛ د رايې د تائيد په هکله په قران کريم کې ايتونه نازل شوې دي، لکه د شرابو د حرامېدو او د شرعي حجاب او کورته د اجازې په هکله او همدارنګه د نورو موضوعاتو په باره کې ذکر شوي دي، محمد ﷺ عمر ﷛ د الهام په باره کې فرمايلي دي:

چې الله جل جلاله د عمر ﷛ د قلبي بصيرت او ژبې په واسطه حق اظهار وي، همدارنګه محمد ﷺ فرمايلي دي:

چې پخوا له تاسو څخه د بني اسرائيلو په قوم کې داسې اشخاص موجود و، چې په هغوى هم الهام کېده سره له دې چې هغوى پيغمبران هم نه و، که چېرته زما په امت کې داسې څوک وي هغه به عمر وي.

صعصعه ﷛ د عمر ﷛ په باره کې فرمايلي دي: وايي کله چې امير معاويه ﷛ د صعصعه ﷛ څخه پوښتنه وکړه، صعصعه ﷛ وويل: عمر ﷛ تل له خپل رعايت څخه اګاه او با خبره وو، په قضاوت کې عادل او له تکبر څخه پاک وو، عذر يې قبلولو او له خلکو څخه يې ځان نه پټاوه، د اجنبي خلکو په مقابل کې له خپلو اقاربو څخه دفاع نه کوله او همېشه د غريبو ملګرى و او د کور دروازه يې همېشه د خلکو پر مخ خلاصه وه.

---

١- د محمد اسماعيل ليکنه، تاريخ خلفاء راشدين (٥٦)

**د عمر ﷛ اولاده:**

د عربو له عادت سره سم لکه څرنګه چې عربو د ډېرو ودونو سره علاقه درلوده،عمر ﷛ هم همدا پالیسي تعقیب کړې ده، چې اعیال یې په لاندې ډول دي.

١- زينب بنت مظعون چې د بني جمعه له قبيلې ښځه وه، له دې ښځه د عمر ﷛ دوه زامن (یو عبدالله او بل عبدالرحمن او یوه لور بې بې حفصه) چې بیا یې د محمد ﷺ سره نکاح وکړه، تولد شوي دي.

٢- مليک بنت جرول چې د خزاعه له قبيلې ښځه وه، چې له دې ښځه عبدالله اصغر تولد شوی دی.

٣- قريه بنت ابي اميه چې د بنې مخذوم له قبيلې ښځه وه.

۴- ام حکيم بنت حارث بن هشام او د بني مخذوم د قبيلې ښځه وه، چې له دې ښځه فاطمه تولد شوې ده.

۵- جميله بنت قيس چې له انصارو ښځه وه او له دې ښځه عاصم تولد شوی دی.

٦- لهيه چې د يمن اوسېدونکې وه او بیا ورڅخه عبدالرحمن اصغر تولد شو.

٧- عاتکه بنت زيد بن عمر چې له ده ښځه په تاريخونو کې د اولادونو په هکله کوم معلومات نشته.

٨- ام کلثوم چې د علي بن ابي طالب لور وه، چې له ده ښځه یې زيد او روقيه تولد شول.

عمر ﷛ د نسب د نژدېوالې په نسب ډېره ارزو درلوده، چې د محمد ﷺ په نسبت کې د يو واده په کولو سره داخل شي، نو هماغه و چې بیا دعمرو بن العاص ﷛ د رهنمايي په واسطه عمر ﷛ د ام کلثوم سره واده وکړ او بیا زيد او روقيه ورڅخه تولد شول.

**د خلافت لپاره د عمر رضي الله عنه انتخابول:**

څرنګه چې ذکر شوه، چې د رسول اکرم ﷺ له وفات څخه وروسته د مهاجرينو او انصارو ترمنځ يو لږ اختلافات پيدا شول چې څوک بايد خليفه شي، دواړه ډلې په دې عقيده وي، چې د خلافت زيات حق زموږ دی، څه وخت چې ابوبکر صديق رضي الله عنه په مرض الموت مبتلاء شو او په دې پوه شو، چې مرګ ته رانږدې شوی يم په دې فکر کې شو که چېرته زه مړ شم نو داسې يوه کامل مؤمن او مسلمان به څوک وي، چې مسلمانان پرې راټول او توحيد کلمې ته يې مکلف او د خلافت عهده په حقيقي معنا ترسره کړي او داسې شرائط رامنځ ته نه شي چې د مسلمانانو د اختلاف سبب او د دوی ترمنځ اختلاف بيا راژوندی کړي، ځکه په دې مرحله کې ډېر حساس شرايط موجود وو، له يوه خوا د اسلام لښکرې د روميانو او فارسيانو سره په مقابله کې مخا مخ وې او له بلې خوا داسې يو شخص تعين شي، چې د مسلمانانو د اختلاف باعث وګرځي. نو په همدې منظور يې ټول صحابه راغوښتل او له هغوی څخه يې نظر واخيست ترڅو داسې يو شخص وټاکل شي، چې پرته له تکبر څخه سخت وي او هم پرته د ضعف څخه نرم وي.

وروسته بيا يې رايې ورکړي داسې يو شخص ته چې هغه د پورتنيو اوصافو خاوند وي او هغه عمر بن خطاب رضي الله عنه و، په پای کې بيا ابوبکر صديق رضي الله عنه د اکابرو صحابه و سره جداجدا مشوره وکړه او بيا يې عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه راوغوښت او له هغه څخه يې په دې باره کې مشوره وغوښته.

عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه وويل: ډېر ښه دی خو شدت (تريخوالی) زيات لري،ابوبکر صديق رضي الله عنه وويل: څرنګه چې عبدالرحمن

زه نرم [۱] لیدلی وم، ځکه عبدالرحمن دارنګه وویل: که چېرته د خلافت چارې عمر رضي الله عنه ته وسپارل شي، شاید د زیاتې تندی په وجه د خلافت امور ترک کړي.

بیا یې عثمان رضي الله عنه بن عفان راوغوښت او له هغه څخه یې دا راز پوښتنه وکړه، عثمان رضي الله عنه وویل: په هغه څه چې زه پوهېږم د عمر رضي الله عنه باطن له ظاهر څخه بهتر دی او زموږ په منځ کې دعمر رضي الله عنه په شان بل څوک نشته، کله چې ابوبکر صدیق رضي الله عنه د صحابه وو سره خپله مشوره سرته ورسوله او ویې لیدل چې ټولو خلکو د عمر رضي الله عنه صلاحیت، لیاقت او د خلافت رایه تائید کړه، نو بیا عثمان بن عفان رضي الله عنه خپل حضور ته راوغوښته او د عمر رضي الله عنه د خلافت تعهد نامې شرحه یې د املاء په ډول عثمان رضي الله عنه ته وویله چې په لاندې ډول ده:

**بسم الله الرحمن الرحیم**

دا تعهد دی چې ابوبکر صدیق ابی قحافه له دنیا څخه په حالت د خروج او اخرت ته اول وخت د دخول کې دی، کافر هم په داسې وخت کې ایمان راوړي، فاجر هم یقین کوي او کاذب هم تصدیق کوي او ما عمر رضي الله عنه تاسو لپاره وروسته له خپل ځان څخه تعین کړ که چېرته عمر رضي الله عنه ښه عمل او عدالت وکړي دا رایه او عمل زما وو او که چېرته ظلم وکړي او تبدیل شي زه علم الغیب نه لرم او زما نیت د خیر دی هرڅوک چې کوم عمل کوي د هماغه عمل مزد او جزاء ګوري او دا ایت یې تلاوت کړ:

﴿وَ سَيَعْلَمُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اَيَّ مُنْقَلَبٍ يَّنْقَلِبُوْنَ.﴾

ژباړه: او ظالمانوته به ډیره ژرمعلومه شي چې هغوی له څه سرنوشت

---

۱- عمر رضي الله عنه زما نرمې وینې چې تېزې کوي،که له ما څخه وروسته خلیفه شي، نرمې به کوي.

سره مخامخ کېږي.
ای اصحابو واعمرﷺ ستاسو لپاره د رسول اللهﷺ جانشين دی اطاعت يې وکړئ.
والسلام عليکم ورحمة الله.
هغه څه چې د ذکرقابل دي هغه د ابوبکر صديقؓ اخرينی خطبه ده، چې دعمرؓ د خلافت په مناسبت د ناروغتيا په حالت کې يې واورو له.
ټول رعيت يې راوغوښت او د نبوي مسجد په طرف يې سوق کړل بيا يې د حمد او ثنا څخه وروسته وفرمايل: ای خلکو! له دنيا څخه پرهېز وکړئ او په دنيا اعتماد مه کوئ، ځکه چې دنيا فريب ورکونکي ده او اخرت ته له دنيا څخه ترجيح ورکړئ او اخرت ته مخ راواړوئ.
له دنيا سره د علاقي په وجه ستاسو په منځ کې مينه او محبت کمېږي که چېرته په اوله مرحله کې د دغه امر پيروي ونه کړئ، نو تر اخره د عمر پورې به بيا نه اصلاح کېږي، دخلافت امر مه قبلوئ مګر په هغه صورت کې چې خليفه په خپل نفس قادر او تسلط ولري، مطيع او تابعداري وي، په داسې حال کې چې خليفه نرم، پوه او د اصحابو د رايې ملګری وي او په بې فايدي کارونو باندې مشغول نشي او هغه څه چې په اينده کې راتلونکي وي غمګين نشي د علم او تحصيل څخه شرم ونه کړي او هغه کارونه چې ستاسوپه مخ کې راځي مراقبت وکړي ، دې شخص عمراو د ښو خصلتونو خاوند دی.
ابوبکر صديقؓ عمرؓ د کامل اعتماد او اطمنان په وجه د خلافت د امورو لپاره تعين کړ او په اينده کې يې د مسلمينو د اتحاد لاره همواره کړه.
لومړنی خطبه: کله چې عمرؓ د خلافت د کارونو والي تعين شو نو د حمد او ثناء څخه وروسته يې خطبه په لاندې ډول ايراد کړه او ويي

**فرمايل:**

ای خلکو! الله جل جلاله تاسو زما په خلافت ازمېښت او امتحان کوي او ماپر دې امر چې زه د تاسو خليفه شوم، ازمېښت او امتحان کوي اوس زه ستاسوامير او تاسو زما رعيت شوئ وروسته د ابوبکر صديق رضي الله عنه چې ستاسو لومړنی خليفه وه، زه ستاسو په منځ کې پرېښودم.

په هغه وخت کې چې ستاسو محمد صلی الله علیه وسلم د لطف او مهربانۍ د سيوري لاندې او د ابوبکر صديق رضي الله عنه څخه مو استفاده کوله ما د اعتدال دکيفيت په خاطر سختي او شدت کاوه، اوس چې زه ستاسو ولي او ستاسو د کارونو مشر انتخاب شوم، اوس به زما شدت يوائې د ظالمانو او بدکارانو په مقابل کې وي او په همدې خطبه کې يې وفرمايل:

ای خلکو! که چېرته زه د نبوي سنت برخلاف او ابوبکر صديق رضي الله عنه دستور درکړم تاسې په څه وکړئ، خلکو ځواب ورنه کړ بيايې خپل نظر تکرار کړ په دغه وخت کې يو ځوان چې توره يې تر ملا تړلې وه، ودريد او توره يې له ملا څخه راخلاصه کړه ويې ويل: (فعلنا هکذا[1]) په دغه توره به سر ستا له تن څخه راښکته او دا ځوان په سر باندې مُچې کړ کله چې عمر رضي الله عنه خليفه شو ټولو ته يې بلنه ورکړه، چې هر کار او عمل زما قابل د اعتراض وي هرڅوک کولای شي چې زما دربار ته راشي او ما خپلو نيمګړتياو باندې پوه کړي او ويې ويل:

(اَحَبَّ النَّاسِ اِلَيَّ ،مَنْ رَفَعَ اِلَيَّ عُيُوبِي)[2] په ما باندې د ټولو خلکو څخه هغه څوک ګران دی چې په خپلو عيبونو کې خبر کړي.

---

۱- د علامه عبدالشکور فاروقي لکهنوي ليکنه تاريخ خلفاء راشدين صفحه۸۳.

۲ - د علامه عبدالشکور فاروقي لکهنوي ليکنه.

**د عمر رضي الله عنه تواضع او عدل:**

د عمر رضي الله عنه زړه د ايمان په رڼا ډک وه، نو د ده اعمالو هم له دغه ځای څخه سرچینه نیولې وه، عمر رضي الله عنه له اسلام څخه مخکې د حملې کولو په شدت اوشجاعت مشهور و او د اسلام د راوړلو څخه وروسته زړه یې په ایماني رڼا ډک او نرم و او د عقل قوه یې ډېره تېزه او په عزم او اراده کې غښتلی وه په رحم او نیکۍ کې بې مثاله وه د تواضع اوصاف د ده په جسم کې تر داسې اندازې پورې وجود درلوده چې د انسان عقل د دې له تصور څخه عاجز دی، په هغه وخت کې چې د عربو او عجمو ټولو شاهانو او فرمان روایانو د شان او شوکت څښتنان و، عمر رضي الله عنه دنیاوي شیانو څخه نفرت کاوه، چې د ده د تواضع یو مثال په لاندې ډول ذکر شوی دی.

کله چې عمر رضي الله عنه خلیفه شو و د خلافت په لومړنۍ مرحله کې چې د منبر مقام ته ورغی نو د هغه ځای عوض چې هلته ابوبکر صدیق کېناسته عمر رضي الله عنه د هغه د پښو پرځای کېناست خلکو ورته وویل: چې پورته ولې نه کېنې؟ عمر رضي الله عنه وویل: هغه ځای چې د ابوبکر صدیق رضي الله عنه د پښو ځای دی، ماته راورسېږي، هغه هم زما لپاره کافي دی.

عمر رضي الله عنه به د ورځې نه بلکې د شپې لخوا هم د خپل رعیت د احوال لپاره سرگردانه ژوند تېراوه او تجسس به یې کاوه، د دې لپاره چې د رعیت له احوال څخه دی نېږدې خبر شي، چې په دې باره کې ډېر اقوال نقل شوي دي ، وایي چې یوه شپه عمر رضي الله عنه په یوه خیمه کې له لرې څخه اور او رڼا لیده او له هغه ځای څخه د اطفالو ماشومانو ژړا او فریاد اورېدل کېده عمر رضي الله عنه په هغه طرف و روان شو څه وخت چې هغه ځای ته ورسېد یوه ښځه یې ولیده د دې لپاره چې د خپلو ماشومانو تسلي حاصله کړي نو یو تش دیګ یې د اور له پاسه ایښی وو او د خلیفه د غفلت له کبله یې

شکايت کاوه، چې خليفه د خپل رعيت پوښتنه نه کوي د هغې ښځې شکايت په اورېدو سره د عمر رضي الله عنه زړه په لړزه باندې راغی او په چالاکۍ سره د دغې ښځې د مرستې په غرض د بيت المال په طرف ولاړ او يوه اندازه خوراکي مواد يې پخپله شا راوړل او غذايي مواد يې د ماشومانو مور ته ورتسليم کړل او بيا د هغه ښځې او د دې په مثال د نورو خلکو لپاره د بيت المال څخه معاش مقرر کړ.

بله شپه بيا راووت او يو سړی يې وليد چې د خپل کور په خوا کې د ډېرې حيرانتيا او خپګان په حالت کې ولاړ دی عمر رضي الله عنه له دې سړي څخه پوښتنه وکړه، چې دلته ولې په داسې حال کې ولاړ يې هغه ورته خپل د کور (ښځه يې د اولاد په مريضتيا مبتلاء وه) حال ووايه په داسې حال کې چې هېڅوک موجود نه و چې له دغې سره د دغې مشکل په هکله مرسته وکړي عمر رضي الله عنه په چالاکۍ سره د خپل کور په طرف ولاړ او له خپل کورڅخه يې خپله ميرمن د دې د کومک لپاره راوسته ترڅو چې اولاد يې تولد او مشکل يې حل شو، بېرته ولاړه او داسې نور ډېر د تعجب کارونه يې د خپل رعيت د هوساينې او ارامۍ لپاره سرته رسولې دي. په دې خاطر چې الله جل جلاله څخه ډېر زيات وېرېده او همېشه د الله جل جلاله په دربار کې د مغفرت دعا کوله، يوه ورځ عمر رضي الله عنه په يوه خطبه کې وفرمايل:

که چېرته څوک په قران کريم کې سوال لري، نو د ابی بن کعب سره دې تماس ونيسي او که چېرې د حرام او حلال په باره کې اشتباه لري، نو له معاذ بن جبل سره دې ارتباط ونيسي او که چېرته د ميراث په هکله سوال لري د زيد بن ثابت رضي الله عنه څخه دې پوښتنه وکړي او که چېرې مال ته

احتياج او ضرورت لري نو ماته دې راشي دا لطف يې (لولا فُلاناً عمر١) د څو تنو په باره کې فرمايلی دی:

يوه ورځ يې د زناکارې ښځې په هکله د سنګسارۍ حکم صادر کړ، چې په دې وخت کې دا ښځه حامله وه معاذ رضي الله عنه وفرمايل: چې ای امير المؤمنين! دا ښځه حمل لري او د سنګسار د جزاء په صورت کې به ماشوم ضايع کړي. په محض اورېدو سره يې فوراً خپل امر مسترد کړ او ويي فرمايل: (لولا معاذ لهلک عمر) که چېرته معاذ موجود نه وايې نو عمر به هلاک وو.

يوه ورځ يې د يوې بلې ښځې په باره کې د سنګسارۍ حکم صادر کړ، علي رضي الله عنه وويل: چې ايا تاسې د محمد صلی الله علیه وسلم څخه نه دي اورېدلي چې درې ډوله خلک له جزاء څخه خلاص دي او په هغوی باندې شرعې حکم نه شي نافذ کېدای.

لومړی لېونی، دويم صغير( نابالغ) او درېيم نائم (ويده) څرنګه چې تاسې په کومه ښځه باندې د سنګسار حکم صادر کړی دی هغه لېونۍ ده، عمر رضي الله عنه فوراً خپل حکم مسترد کړ او ويي ويل: لولا علي لهلک عمر. که چېرته علي موجود نه وای نو عمر هلاک وه.

يوه ورځ عمر رضي الله عنه په يوه خطبه کې وويل: ای خلکو! د ښځو مهر زيات نه کړئ او که هرچا دمحمد صلی الله علیه وسلم د مطهراتو او لورګانو څخه زيات مهر مقرر کړ نو هغه به بيا بيت المال ته حواله شي، په دې وخت يوه سپين سرې ښځه پورته شوه او ويي ويل: تاسې حق نه لرئ، چې داسې وکړئ ځکه چې الله جل جلاله فرمايلي دي:

---

١ -که چېرته فلانی نه وای عمر هلاک و، د علامه عبدالشکور ليکنه، خلفاء راشدين (٨۵)مخ

﴿ وَّ اٰتَيۡتُمۡ اِحۡدٰىهُنَّ قِنۡطَارًا فَلَا تَاۡخُذُوۡا مِنۡهُ شَيۡـًٔا ؕ اَتَاۡخُذُوۡنَهٗ بُهۡتَانًا وَّ اِثۡمًا مُّبِيۡنًا ﴾

ژباړه: نو که تاسې هغې ته په پنډونو مال هم ورکړی وي، له هغه نه بېرته هېڅ شی مه اخلئ ایا تاسې په تورتپلو او ښکاره ظلم کولو هغه بیرته اخلئ؟

څه وخت چې عمر رضي الله عنه دا ایت واورېد له منبر څخه ښکته شو او ویې ویل: (كُلُّ النَّاسِ أَعْلَمُ عمر حتى العجائز) یعنې ټول خلک له عمر رضي الله عنه څخه پوه دي حتی سپین سرې ښځې هم.

د عمر رضي الله عنه زهد، تقوی او عدل تر داسې حده پورې وه، چې دنیا یې بالکل ترک کړې وه، بلکې له بیت المال څخه یې د ځان لپاره دومره معاش مقرر کړی وو، چې د ده ورځنۍ ګذاره پرې نه کېده سره ددې چې د تجارت سلسله یې هم جاري وه، خو د دوی ټولو عایداتو سره سره یې بیا هم ورځنۍ ګذاره نه کېده او د بیت المال څخه یې همېشه پیسې قرض اخیستې د دغه پورته مصارفو علت یوازې د میلمستیا او میلمه پالنه وه.

عمر رضي الله عنه په کال کې دوه جوړې جامې درلودې چې یوه جوړه یې د ژمي او بله جوړه یې د اوړي لپاره وه، د عمر رضي الله عنه ډوډۍ د درې قسمه خوړو څخه عبارت وه، چې کله به یې ډوډۍ د زیتون په غوړو باندې غوړوله او کله به یې وچه ډوډۍ د شیدو سره خوړله او کله به یې وچه غوښه [۱] او کله به یې تازه غوښه خوړه، یو وخت له عراق څخه یو شمېر میلمانه د عمر رضي الله عنه د لیدنې لپاره راغلل چې جریر بن عبدالله هم د دوی په ډله کې شامل و

۱- طبقات ابن سعد او ازالة الخصاء څخه رانقل شوې چې تازه غوښه به یې په میاشت کې یو ځل استعمالوله.

کوم خواره چې د عمر رضی الله عنه لخوا ورته تیار شوې وو ، نوموړي میلمانه په دې قادر نه شو، چې د دغو خوړو څخه استفاده وکړي
څرنګه چې پورته ذکر شو، عمر رضی الله عنه دوه جوړه جامې درلودې او هغه به هم داسې زړې وې، چې د څو پیوندونو په واسطه به یې کلکې کړې وې، دزید بن ثابت رضی الله عنه څخه روایت دی، چې وایي ما یوه ورځ د عمر رضی الله عنه په جامو کې اولس (۱۷) پیوندونه وشمېرل په داسې حال کې چې دولس پیوندونه به همېشه موجود و، سوال پیدا کېږي چې عمر رضی الله عنه ولې داسې ژوند غوره کړی وو؟ دعمر رضی الله عنه دا ډول ژوند دا معنا ورکوي، چې دی بخیل و او یا یې په بیت المال صلاحیت نه درلوده، بلکې عمر رضی الله عنه دا خیال درلوده چې باید مسلمانان سخت ګیري او د هر مشکل په مقابل کې مقاومت وکړي او بل دا چې نه یې غوښتل چې د بیت المال پیسې په شخصي خواهشاتو لپاره استعمال کړي او درېیم دا چې د راتلونکي نسلونو لپاره یوه مستقیمه لاره تعینه شي او څلورم دا چې د الله جل جلاله د حساب په مقابل کې په حقه ولاړ وي او له الله جل جلاله څخه ډېر زیات ویرېده.

## اسلامي فتوحات

ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خپل خلافت په دوره کې د اسلامي فتوحاتو لمن د جزیرة العرب په ټولو مناطقو کې خپره وه بلکې خارجي هېوادونو ته یې هم لاره اواره کړي وه، ځکه محمد صلی الله علیه وسلم اسامه بن زید د شام د حملې لپاره اماده کړې وه، مګر د محمد صلی الله علیه وسلم رحلت د دې کار مخه ونیوه، کله چې ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلیفه شو نو هماغه و چې د محمد صلی الله علیه وسلم د هدایت پر اساس لومړنی لښکر د اسامه بن زید په مشرۍ د شام په طرف لېږلی شو دا هغه خلک و، چې کله محمد صلی الله علیه وسلم د اسلام د بلنې قاصدان همسایه هېوادونو ته ولېږل، نو د اسلام قاصد یې په قتل سره ورساوه، چې په نتیجه کې د اسامه بن زید لښکر په بري سره بېرته راوګرځېدل، کله چې

د مسلمانانو لښکري په جزيرة العرب کې د مرتدينو او د فساد کوونکو په مقابل کې په جنګ مصروف وي، روميانو وخت غنيمت وګاڼه او په مسلمانانو يې د هجوم پلان طرحه کړ مګر لږه موده وروسته د مسلمانانو له قدرت څخه خبر شول، څرنګه چې الله جل جلاله فرمايلي دي:

﴿ وَ قَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ وَ لَا تَعْتَدُوْا ؕ اِنَّ اللهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴾

ژباړه: او تاسې د الله جل جلاله په لار کښې له هغو کسانو سره وجنګېږئ، چې له تاسې سره جنګېږي، خو تېرى مه کوئ چې الله تيرى کوونکى نه خوښوي.

کله چې ابوبکر صديق رضي الله عنه لومړى خطبه مسلمانانو ته وړاندې کړه نو داسې وصيت يې وکړ او ويې ويل: هېڅ قوم د الله جل جلاله په لاره کې جهاد نه ترک کوي، مګر هر قوم چې جهاد ترک کړي هغه قوم به په خوارۍ او ذلت مبتلا شي. هغه عوامل چې ابوبکر صديق رضي الله عنه مسلمانانو د الله جل جلاله په لاره کې جهاد ته تشويق کړي او هم يې متحد کړي په لاندې ډول دي.

۱- د مسلمانانو سره رغبت.

۲- نشر او اشاعت (د اسلام دعوت) له هېواد څخه بهر.

۳- د هغو کسانو تضمين اوساتنه کول چې اسلام قبلوي.

۴- د عربو اماده کول د جهاد لپاره په مقابل د شخصي او قبيلوي منازعو او جنګونو کې چې همېشه په خپل منځ کې درلودي.

د فارس او روم کمزوري کول د جنګ د تکتيک په ذريعه.

۵- د ظالمانو حاکمانو څخه ازادي ورکول د شرعي احکامو قايمول د روميانو او فارسيانو په مقابل کې په جرئت سره د جنګ پيل کړل او د روميانو او فارسيانو تشويق کول د اسلام د دين په لور تشويق کول.

پورتني تړول داسې عوامل و، چې د روميانو او فارسيانو لوی امپراطورۍ تجزيه او هميش لپاره يې محوه کړي.

**په فارس باندې د اسلام غلبه:**

په پخوانيو وختونو کې د فارس دولت يو ډېر لوی مقتدر او قدرت من ددولت چې په ګاونډيو هېوادونو کې يې زيات نفوذ درلوده، حاکمان يې ډېر ظالمان، متکبر او مغرر خلک و، د دوی ظالمو حاکمانو ظلم په خپل ملت باندې نهايت زيات و او هغوی به يې په ظلم سره ايسارول او له هغوی سره به يې کينه، بغض او حسد درلوده حتی چې لښکريانو به يې په مخلصانه ډول د خپل ملک او حاکمانو څخه دفاع هم نه کوله، بلکې په دې فکر او خيال کې و چې څرنګه د دوی د ظلم او استبداد خلاص شي لومړنی جنګ د ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت په وخت کې د فارس او د عربو ترمنځ جنګ د عراق په سرحداتو کې د مثنی بن حارث شيباني تر قوماندې لاندې شروع شو، څه وخت چې د مثنی بن حارث لږ لښکر په فارسيانو باندې غالب شو نو ابوبکر صديق رضي الله عنه د خالد بن وليد رضي الله عنه (سيف الله) په مشرۍ يو لوی لښکر ورولېږه او مثنی بن حارث ته يې دستور ورکړ چې د خالد بن وليد رضي الله عنه د امر پېروي وکړي.

خالد بن وليد رضي الله عنه د فارسيانو په مقابل کې جنګ شروع کړ او فتحه يې حاصله کړه او ډېر لوی ښارونه ورته تسليم شول او صلحه يې وکړه او د هغه ځای په اوسېدونکو يې ماليه قبوله کړه او د هغه ځای خلکو ته يې دعوت ورکړ چې د دوی سره يوځای شي. ترڅو د هغه ځای ظالم حاکمان له منځه يوسي په پای کې يې د حيره، انبار او د عين التمر ښارونه يې فتحه کړل په دې ښارونو کې د عربو ډېر زيات خلک بنديان و، کوم چې د فارسيانو په واسطه نيولې شوې و، هغه ازاد شول.

د خالد بن وليد رضي الله عنه د ډېرو مهمو جګړو څخه دا يله جګړه وه چې ايله د

فارس خليج په سواحلو کې حاکم و چې د دغه ځای حاکمانو خپل لښکر يو له بل سره د ځنځير په واسطه تړلی وه ترڅو له جنګ څخه فرار ونه کړي په همدغه وخت چې خالد بن وليد رضي الله عنه د فارس ښارونه يو پر بل پسې فتحه کول د اسلام لښکر د روميانو په مقابل کې د مشکلاتو سره مخامخ شو.

ابوبکر صديق رضي الله عنه، خالد بن وليد رضي الله عنه ته امر وکړ چې مثنی بن حارث د فارسيانو په مقابل کې پرېږده او پخپله د مسلمانانو کوک ته د روم خواته ولاړ شه په همدغه وخت کې ابوبکر صديق رضي الله عنه ناروغ او بيا وفات او د خلافت مقام عمر رضي الله عنه ته وروسپارل شو.

عمر رضي الله عنه هم د فارسيانو او روميانو په مقابل کې د ابوبکر صديق رضي الله عنه سياست تعقيب کړ ترڅو فتحه او پيروزي انجام ته ورسېږي همدارنګه عمر رضي الله عنه د مثنی بن حارث (د فارسيانو په مقابله کې و) د مرستې لپاره سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه په مشرۍ اته زره (۸۰۰۰) فوځ ورولېږه، ځکه چې اوريدلې يې و، چې فارسيانو يو لوی لښکر د مثنی بن حارث مقابلې کې ټول کړی دی، سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه د فارس په داخل کې يو ځای ته چې قادسيه نومېږي ورسيد.

د قادسې جګړه:

مخکې ذکر شو چې کله د مثنی بن حارث شيباني د فارسيانو په مقابل کې د مشکلاتو سره مخامخ شو.

د عمر رضي الله عنه په امر سعد بن ابي وقاص د (۸۰۰۰) اته زره فوځ سره د ده کومک لپاره راولېږل شو.

فوځ له د سره د کومک لپاره راولېږل شو، په دغه وخت مثنی بن حارث شيباني چې د هغو زخمونو له کبله چې د جسر په جګړه کې ورسيدلي و د مدينې په لور ستون او هلته وفات شو دلته عمر رضي الله عنه پرله پسې سعد رضي الله عنه

هم د ده له وينا سره خپل لښکر چمتو او په قادسيه کې ځای ونيوه، چې مخې ته يې عجمو ځمکه او شاته يې د عربو غرني ځايونه واقع و، نو که لښکر ماتې وکړي دښمن به نشي ورپسې ورتلای د يزدګر لخوا رستم د فرخزادار منې زوی د ايراني لښکر مشر مقرر شوله مدائن څخه ساباط راغی،عمرؓ د اسلام لښکر سپاه سالار ته داسې امر وکړ چې پخوا تر جګړې خپل څو تنه دښمنانو ته ورولېږه او دا غوښتنه ترې وکړه، چې د دريو خبرو يوه ومنئ.

- اسلام قبول کړئ.
- ماليات يا جزيه.
- جنګ.

اسلام حيات ډېر ساده او عادي وضعيت مدائن (د ايران پايتخت) چې له قادسيې څخه شلوېښت ميله لري پروت دی، وخوځېد هر چا چې به په لاره کې ليدل حيران به پاتې او يو له بله به يې پوښتنې کولې چې دا خلک به په څه ډول په دغه بې وزلۍ او خوار حالت د ايران له داسې مقتدر دولت سره د جګړې منکولې ونښولې؟ اسلامي سفيران چې مدائن ته ورسېدل يزدګر د هم خبر شو.

خپل دربار يې په خورا برم او لوی شان سره جوړ کړ ترڅو عربان ووېر وي، خو د عربو نمايندګانو د دغه برم هېڅ پروا ونه کړه او په ډېره زړورتيا د هغه دربار ته ورغلل د ايران پاچا د حيات له مشر نعمان بن مقرب څخه د دې د راتګ د مقصد پوښتنه وکړه، نعمان لومړی د اسلام په دربار کې ښې ښې خوندورې او څرګندې خبرې وکړي بيا يې ورته وويل: ای پاچا! موږ تا اسلام ته رابولو که يې ومنې نو زموږ ورور به يې په هره لاره چې راغلي يو بېرته به ځو او که نه موږ ته جزيه راکړه، ترڅو د ضرورت په وخت کې درسره مرسته وکړو.

که زموږ دا پشنهادونه ونه منل شي د پای فيصله او پريکړه په توره سره کېږي يزدګرد د ډېر قهره سور واوښت ويې ويل: په نړۍ کې تر تاسو خوار او ذليل قوم نه و کوم وخت چې به له تاسو څخه کوم يوه تمرد وړ ما په خپلو حاکمانو ته امر ورکړ چې په هيداد يې ورسوي، اوس ورشئ زه به خپلو مامورينو ته ووايم چې خواړه او کالي درکړي نعمان خو پټه خوله ناست و خو مغيره بن زراره ور ولاړ شو او د ايران پاچا ته يې داسې وويل:

ای پاچا! دغه خلک د عربانو مشران دي او د عربو د مشرانو دا خوی دی، چې چا ته بد او تريخ ځواب نه ورکوي بيا مغيره پخپلو خبرو پسې د جاهليت احوال او د عربو د اسلام حالونه وويل او يزدګرد پام يې خپلې اشتباه ته راواړوه او په پای کې يې داسې وويل: که چېرې د اسلام او جزيې پيشنهاد ونه منل شي نو موږ نور د تورې په خوله له تاسو سره خبرې کوو.

يزدګرد په دې خبره په غضب شو او ويې ويل: که د سفيرانو وژل مروج او روا (۱) وي يو به مې هم ژوندی نه وی پرېښی، بيا يې امر وکړ چې يوه توکرۍ له خاورو ډکه راوړئ او د هيئت د مشر په غاړه کې ور واچوئ چې خاوره يې راوړه عاصم بن عمرو ور ولاړ شو او ويې ويل د دې هيئت مشر زه يم توکرۍ ماته راکړه، توکرۍ يې په سر کېښوده او سره له ملګرو له دربار څخه راووت او دا توکرۍ يې سعد بن ابي وقاص حضور ته راوړه او ويې ويل: د ايران خاوره دې مبارک شه رستم چې د مسلمانانو زړورتيا او له ميړانې څخه پوره خبر وو، له جګړې څخه خورا ويريده، نو ځرنګه چې د قادسيې ته راورسيد له سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه يې

۱ - د زياتو معلوماتو لپاره د اسلام څلور ستر فاتحين وګورئ.

هيله وکړه چې يو څو تنه راوليږه ترڅو د مسلمانانو له اصلي مرام څخه خبر شي د سعد رضي الله عنه لخوا مغيره بن شعبه سره له څو تنو دغې وظيفې ته مامور شول دلته نو رستم خپل دربار ډېر ښکلی او ښايسته جوړ کړو ترڅو مسلمانان له خپل برم څخه وويروي خو مغيره په ډېره ساده ګۍ د رستم دربار ته مخامخ ورغی او ترڅنګ يې په تخت کېناست ولاړو يو بل ته ستغ، ستغ ځوابونه ورکول څرنګه چې رستم د يو لک پنځوس زره (۱۵۰۰۰۰) لښکر سره چې دا هم په خورا جنګې اسلحو او پيلانو قوت او طاقت ډېر زيات مغرور وو نو په قهر شو او ويې ويل زما دې په لمر قسم وي، چې مخکې د لمر ختلو به تاسې ټول په خاورو وسپارم مغيره بېرته خپل لښکر ته ورستون شو او دواړه خواوو د جګړې لپاره تياری ونيو.
بله ورځ د دواړو ترمنځ جګړه ونښته او درې نيمې ورځې يې دوام وکړ چې د نړۍ له نامتو جګړو څخه شمېرل کېږي(۱)

د جګړې په لومړۍ ورځ عربان د دښمن له جګړه کوونکو فيلانو څخه ډېر په تنګ شول خو په دويمه ورځ د ايرانيانو زور ختم شو او په همدغه ورځ مسلمانانوچې مرسته راورسيده د مسلمانانو بری ثابت شو په درېيمه ورځ هم جګړې په ډېر شدت جريان درلوده او سخته سيلۍ را الوتې وه چې ايرانيان يې د دې سيلۍ مخې ته واقع وو د شپې هم په همدې ډول جګړه وه، چې د دغې شپې جګړې ته د ليلة الهرير وايي او ډېره سخته شپه وه په پای کې د ايران د لښکر مشر رستم د هلال بن علقمه رضي الله عنه له لاسه ووژل شو او د ايران لښکر ماتې وخوړه سره له دې چې د ايران ډېرو لوړو لوړو سردارانو په دې جګړه کې ګډون درلوده، خورا ښه لښکر يې جوړ کړی وو، خو فتحه د مسلمانانو په برخه شوه.

---

۱- د زيات معلوماتو لپاره د اسلام څلور ستر فاتحين وګورئ

ایرانیانو داسې کلکه ماتې وخوړه چې د عربو نیول یې له مغزو څخه په تاریخي ډول ووتل، خو دغومره یې کول چې خپله خاوره وساتي په دغه جګړه کې ډېر مسلمانان د انصارو او مهاجرینو څخه هم شهیدان شول طلحه[1] اسدي چې پخوا یې د نبوت دعوه کړي وه او بیا مسلمان شوی وو دا هم شهید شو کله چې په دغه جنګ کې بې بې خنساء څلور اولادونه شهیدان شول او د خپل اولاد څخه خبره شوه حمد او ثنا یې ووېله او ویې ویل: شکر دی الله جل جلاله چې زما هم څلور اولاده ستا په لار کې شهیدان شول، ستا حضور ته مشرف شول، دغه جګړه په حقیقت کې مسلمانانو ته د یرموک د فتحې په څېر د اهمیت وړ وه.

وروسته له هغې سعد رضي الله عنه مخه د مدائن په لور شوه، چې په (١٦هـ) شپاړلس هجري کال کې په هوسا یې سره ونیوو دلته ډېرې ولجې د فاتحینو لاس ته ورغلې چې پنځمه برخه یې مرکز ته راولېږله، د دې غنیمت په جمله کې یوه داسې غالۍ وه، چې په نړۍ کې یې ساری نه درلوده، دا غالۍ یې په ډېرو قیمتي جواهرو ښکلې شوې وه، چې (٩٠) ګزه یې په لسو ګزو کې پراخوالی درلوده، د بهارستان په نامه یې بلله د ایران پاچا به د کال په لومړۍ ورځ غوړوله او د شرابو د څښلو دربار به یې پرې جوړاوه.

وروسته تر دې د جلولا جګړه پېښه او په پای کې فتحه د مسلمانانو په برخه شوه او ډېرې ولجې یې وکړې کله چې سعد رضي الله عنه د دې کامیابۍ زیری عمر رضي الله عنه ته ورولېږه، عمر رضي الله عنه ځواب ورکړ، چې پخپل ځای توقف وکړه او په همدې مقدار قانع شه او کفار نور مه تعقیبوه.

سعد رضي الله عنه له دې څخه وروسته کوفه د خپل ځان لپاره انتخاب کړه او په

---

١- د محمد اسماعیل ابراهیم لیکنه تاریخ خلفاء راشدین ٦٦

کوفه کې يو لوی جامع مسجد جوړ کړ او د کوفي ښار يې د لويو ښارونو په جمله کې راوستو.

د يزدګرد دې شکست البته يو دايمي او اخريني شکست وه چې بيا په اسانۍ سره ونشو کولی چې په دې خاوره کې بيا خپل تيت او پرک لښکر راجمعه کړي مګر د څلورو کلونو څخه وروسته بيا يې يو لوی لښکر چې شمېر يې (۱۸۰۰۰۰) تنو ته رسيده راټول کړ او د مروان شاه په مشرۍ د نهاوند لور ته ولېږه د مسلمانانو لخوا نعمان بن مقرن رضي الله عنه د دوی د مقابلې لپاره چمتو شو، ايرانيانو چې د عربو له ميړانې څخه ښه خبر وو، دا ځل يې د جګړې ترتيبات داسې ونيول چې په کلکو کلاګانو يعنې کوټونو او پخو- پخو سنګرونو کې يې ځای ونيوه او بيا د مدافعې په توګه جګړه داسې وځنډوي، چې د مسلمانانو لښکر ستومانه شي او سړو او واورو له لاسه چې د مقابلې توان نه لري وتښتي خو نعمان بن مقرن رضي الله عنه داسې حمله جوړه کړه چې ايرانيان يې له کوټونو او سنګرونو څخه راوويستل کله چې ايرانيان له سنګرونو څخه راووتل غوښتل يې د اسلام لښکر ته ماتې ورکړي په دوی پسې وروځغستل د مسلمانانو نور لښکر چې پټونې يې کړې وه له هر لورې پر ايرانيانو راوخوځېدل يوه ډېره خونړۍ جګړه يې ترمنځ پېښه شوه د مسلمانانو لښکر بريالی شو او ډېرې خزانې او مالونه د فاتحينو لاس ته ورغلل د ساسانيانو ټينګار يو مخ له منځه لاړ نو ځکه يې دا جګړه فتح الفتوح وبلله، وروسته له دې اسلامي لښکرو يو پر بل پسې د ايرانيانو نور ښارونه ونيول.

يزدګرد د درېيم ځل لپاره مجبور شو چې فرار وکړي او د خراسان په طرف ولاړ شي ترڅو هلته د عثمان رضي الله عنه د خلافت په وخت کې د يوه ژرنده ګري په واسطه د امو د سيند پر غاړه ووژل شو، د يزدګر د وژلو

سره سم د ساسانيانو د حکومت دور چې د ارد شيريابکان[١] په واسطه يې تهداب کېښودل شوی وه، ختم او تغر يې ټول شو، الله جل جلاله د رسول الله ﷺ دعا چې د فارسيانو د شاهانو په مقابل کې (خسرو پرويز) چې د رسول ﷺ اسلامي دعوت نامه يې څيرې کړې وه الله جل جلاله د دوی د هلاکت کېدو لپاره قبوله کړه او د فارسيانو د هغه جاه او جلال چې شان او شوکت درلوده او حاکمانو به يې ظلم کاوه او د الله جل جلاله د نعمتونو کفران به کاوه او اخلاق يې فاسد وو د ذلت او خوارۍ سره مخ کړل، د الله جل جلاله هغه وينا چې د سرکشو قومونو په هکله يې فرمايلي ده. د فارسيانو په باب ښه تطبيق کوي:

﴿ وَ اِذَآ اَرَدْنَآ اَنْ نُّهْلِكَ قَرْيَةً اَمَرْنَا مُتْرَفِيْهَا فَفَسَقُوْا فِيْهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنٰهَا تَدْمِيْرًا ﴾.

ژباړه: او کله چې مونږ د کومې سيمې د هلا کولو اراده کوونو د هغې بډايانو ته حکم کوو او هغوی په کښې په نافرمانيو لاس پورې کوي، هله نو پر هغې سيمې د عذاب فيصله تطبيقېږي او مونږ هغه بيخي تباه کوو

څه وخت چې ابوبکر صديق رضي الله عنه خپل قاصد د خالد بن وليد رضي الله عنه په طرف ولېږه، د دې لپاره چې خالد بن وليد رضي الله عنه د شام په طرف د مسلمانانو مرستې ته ورشي خالد بن وليد رضي الله عنه خپل لښکر په ډېر سرعت د هغه نيم لښکر سره چې ورسره وو حرکت وکړ د صعب العبور لاره يې چې د فارس او شام د دوو دولتونو ترمنځ وه په چالاکۍ سره طی کړه او د هغه څلورو لښکرو سره چې د ابوبکر صديق رضي الله عنه په واسطه لېږل شوې وه، يو ځای شول، چې هغه څلور لښکرې په لاندې ډول دي.

---

١- ارد شيريابکان د ساسانيانو د حکومت بنسټ پر ٢٢٦ ميلادي کال کې ايښی دی.

۱. د ابو عبيده بن جراح رضي الله عنه لښکر چې د روم پر ښار باندې د حملې کوکو لپاره چمتو شوی و.

۲. د عمرو بن العاص رضي الله عنه لښکر چې د فلسطين خواته تيار شوی و.

۳. د سرجيل بن حسنه لښکر چې د اردن د وادې خواته تيار شوی و.

۴. د يزيد بن ابوسفيان لښکر چې د دمشق خوا مؤظف و.

مخکې له دې څخه چې د شام د جنګ په باره کې معلومات ذکر کړو لازم دی چې د شام د لوی امپراطورۍ له جغرافيوي موقعيت څخه خبر شو.

د شام غرب خواته پير يا شرق خواته يې د شام ښارونه او جنوب خواته يې له مصر سره او شمال خواته د افريقا سره وصل و.

د روم د حاکمانو عقايد، عادات او ژبې مختلفې وي دغو حاکمانو له خپل رعيت سره هيڅ ډول ظلم او استبداد څخه ډډه نه کوله او په ملت يې هر ډول سختې او سنګينې ماليې مقررې کړې وې او په بدترينو طريقو په يې ملت استثمارا وه، ملت د دوی د زيات ظلم په وجه د زياتو مشکلاتو سره مخامخ و او همېشه يې د دوی په مقابل کې د ډېرو هيلو او فريبو څخه کار اخيسته او يا به يې د دوی په مقابل کې د جنګ اعلان کاوه ترڅو د دوی له ظلم څخه نجات ومومي.

د شام فتحه

کوم وخت چې خالد بن وليد رضي الله عنه د شام په طرف حرکت وکړ او هلته يې په زيات تعداد روميان مسلح وليدل نو لازمه يې وګڼله چې د اسلام لښکر چې په څلورو برخو تقسيم شوی و، ترتيب او نظم کړی او د يوې واحدې قومندې لاندې سره راټول کړي، کله چې مو وليدل د يرموک جګړې د شام دروازې مسلمانانو ته رانيستلې او هرقل د خپل لښکر د ماتې خبر واورېده نو له شام سره يې داسې الله جل جلاله پامانې وکړه:

ای شامه! په الله جل جلاله مې سپارلی يې ته راته ښکارې چې بيا دې مخ ووينم

په رښتیا مسلمانانو وروسته له دې سوبې بیا د شام او فلسطین په جګړو کې د دښمن کوم ټینګار ونه لید ځکه په لږه موده کې په ډېرو هو سایي د دمشق، حمص قیساریه، حلبو انطاکیه او د نورو په فتحو بریالي شول.
د دمشق فتحه مؤرخین داسې لیکي چې دغه لوی او مهم ښار چې شاوخوایې خندونه، لوی لوی برجونه او کوټونه جوړ شوې وو، د اسلام څلور سردارانو د خالدبن ولید رضي الله عنه او ابوعبیده بن جراح رضي الله عنه عمرو بن عاص رضي الله عنه یزید بن ابوسفیان رضي الله عنه د هر یو له یوې یوې خوا یرغل پرې وکړ او هغه ښار یې داسې محاصره کړ، چې (۷۰) ورځې محاصره و، یوه شپه یې د ښار خلکو جشن درلوده، په خپلو لوبو بوخت وو خالد رضي الله عنه له خندق څخه ورپرېوت او د کمندو په مرسته یې پر کوټ وخوت چې د ختیځ له لورې لاره پرانسته، کله چې د محصورین له دغې پېښې څخه خبر شول د مسلمانانو له نورو ټولیو سره په خبرو شول او د سولې تړون یې منځ ته سره واچاوه او روغه یې وکړه، د همدې روغې او معاهدې پر اساس د اسلام نور لښکر ښار ته ورننوت او د ښار په منځ کې د خالد رضي الله عنه له لښکر سره یوځای شو خالد رضي الله عنه چې د ښار یوه برخه د خپلې تورې په زور نیولې وه، غوښتل یې چې ټول ښار پرانیستل شوی وبولې خو د اسلام نورو سردارانو چې روغه یې ورسره کړې وه، وویل چې موږ امن ورکړی دی، کله چې دا خبره منځ ته سره ولویده د خالدبن ولید رضي الله عنه له خپل حق څخه تېر شو او دغه ښار په هغه ښارونو کې وشمېرل شو چې په سوله نیولی شوی و، د مسلمانانو دغه ښه سلوک، عدل او په وعده درېدلو لا د دوی د پرمختګ لپاره د فتح ورونه (دروازې) پرانیستل ، په همدغه وخت کې عمرو بن عاص رضي الله عنه د فلسطین جنوب خواته متوجه شو د رومیانو پر لښکر باندې بریالي شول، وروسته له دې څخه د هجرت په ۱۵ هـ کال د اجنا دین فتحه منځ ته راغله، عمرو بن العاص رضي الله عنه وروسته

له یوې خونړۍ جګړه دغه ښار ونیو مؤرخینو د اجنادین جګړې د یرموک او قادسیې د جګړو په کتار کې شمېرلې ده، کله چې عمرو بن العاص رضي الله عنه د اجنادین له سوبې څخه خلاص شو، نو یې یرویشلم (بیت المقدس) خواته چې په هغه وخت کې د فلسطین مرکز و مخه ونیوه.

څرنګه چې یهودیان، مسحیانو او مسلمانانو دغه ښار ته د ډېر احترام په سترګه کتل او له ډېرو سپېڅلو او مقدسو ښارونو څخه یې باله. نو د دوارو خواوو یې احتراماً داسې کوښښ کاوه، چې هلته جګړې پېښې نه شي، کله چې په پای کې مسیحانو د بریالیتوب ور تړلی ولید او مسلمانانو د دغه ښار محاصره څلور میاشتې اوږده کړه، نو داسې سوله یې وغوښته چې په خپله خلیفه راشي او له دوی سره تړون وکړي بیا به ښار وسپارل شي.

عمر رضي الله عنه چې دا خبره واورېده سره له دې چې ښه جوړ هم نه وه، پر اوښ سپور دی او یو مریی یې د فلسطین په لور ژر راوخوځېدل کله به دی او کله به یې مریی پر اوښ په خپل وار سپرېدل چې په دغه ترتیب امیر المؤمنین او د ده مری بیت المقدس ته ورسېدل، د ښار له خلکو سره یې سوله وکړه چې بیا یې دوی ته امان ورکړ او ښار د مسلمانانو لاس ته ورغی.

## د مصر فتحه

### له اسلام څخه مخکې د مصر حالات:

د مصر اوسېدونکو د رومي حاکمانو څخه ډېر ناراضه وو او همېشه انتقام اخیستلو ته په انتظار وو رومیانو په مصري وګړو باندې د هېڅ راز ظلم، تېري او استثمار څخه ځان نه ژغوره، هر راز مالیات یې په دوی باندې منل، دوی د لوړو مقامونو څخه محروم کړای شوي و د

عقايدو په هکله يې داسې ظلم کاوه، چې زيات خلک د دوی له ظلم څخه تېښتې ته مجبور شوې وو او له ښار څخه د باندې په دښتو او بيديااوو کې استوګنه غوره کړې وه، چې له سترګو څخه يې پناوي خصوصاً د دقيانوس د حکومت په دوره کې ډېر ديندراه خلک ووژل شول، چې بيا مصريانو دا زمانه د شهيدانو د زمانې په نامه ونوموله.

کله چې په دې حساسو شرايطو کې عمرو بن عاص رضي الله عنه د مصر د فتحې لپاره د خليفه په اجازه اقدام وکړ خليفه په لومړۍ مرحله کې زره نازره و نو بيا يې يو مکتوب او ورته وليکه ويې ويل: که دغه ليک پخوا تردې چې د مصر خاورې ته ورننوځې در ورسېږي له خپل عزم څخه مخ راوا ړوه اوراوګرځه او که د مصر خاورې ته ورننوتې وې دا کاغذ در ورسيد خپل سفر مه پرېږده، الله جل جلاله دې مل شه. کله چې ليک عمرو بن عاص رضي الله عنه ته ور ورسيد په هغه وخت کې دی د مصر خاورې ته ورننوتی و.

عمرو بن عاص رضي الله عنه د مصر د فتحې لپاره څلور زره (۴۰۰۰) لښکر برابر کړی و، لومړی ځل د سينا له دښتې څخه تېر شو او د عريش ښار ته چې بدون د مقابلې څخه تسليم شوی و، ورسېدل او لښکر يې د فرما ښار ته ورننوتل په هغه ځای کې يو افسر (ارطبون) چې له بليس[1] څخه فرار شوی و او يو لوی لښکر يې برابر او د مسلمانانو له مقاومت سره مخامخ شو په پای کې نيکمرغي او بری د مسلمانانو په برخه شو.

بيا عمرو بن العاص رضي الله عنه او لښکر يې د ام د نين ښار ته چې هلته د روماني فوځ ځای پرځای شوی و، ورسيد په دغه ځای کې هم د يو سخت جنګ سره مخامخ شولو په دغه ځای کې د اسلام لښکر ونشو کړای چې د کفر ريښې په قطعې ډول له منځ څخه وباسي، نو عمروبن عاص رضي الله عنه خليفه

---

۱- بليس د هغه وخت د پاچا نوم وو.

څخه مرسته وغوښته خليفه څلور زره (۴۰۰۰) جنګې عسکر د زبير بن عوام او عبادة بن صامت او مقداد بن اسود په ګډون دغه ځای ته ورولېږل د دې مرتسې د رسېدو څخه مخکې د دواړو محاربوی قواو ترمنځ د عين الشمس په ښار کې بيا جګړه پيل شوه، ترڅو د روميانو لښکر د بدترين شکست سره مخامخ او تېښتې ته مجبور شول او د بابليون کلا ته چې د دوی يوه محکمه پناه ګاه وه پناه ويوړه او د روم لښکرې په داخل د کلاکې د جنګ لپاره چمتو شوې، د اسلام لښکرو دغه کلا د شپږو(٦) مياشتو لپاره کلکه محاصره کړه ترڅو چې مسلمانانو دغه محاصره نوره هم ټينګه کړه، روميان سولې او مذاکرې ته حاضر شولو عمروبن العاصؓ د مصر حاکم (مقوقيس) ته چې د قيصر روم له خوا مقرر شوی و د سولې د فايدې په ارتباط يو ليک ور واستاوه او په ليک کې درې شرطه د مسلمانانو له خوا وړاندې شول .

- اسلام
- ماليات او جزيه
- جنګ

مقوقيس له پورته شرطونو څخه جزيه او ماليات قبول کړل جنګ يې د مسلمانانو په مقابل کې قبول نه کړ، ځکه چې مقوقيس يو شمېر قاصدان د مسلمانانو د حالاتو لپاره لېږلي وو، قاصدانو د مسلمانانو د جرئت په باره کې ډېر احوالات ذکر کړي وو او په دغه ترڅ کې دغه خبره هم زياته کړې وه دا يو داسې قوم دی، چې له ژوند څخه مرګ په دغه لاره کې ډېر خوښ لري، تواضع او عاجزي په تکبر او مغروری لوړه بولي او له دوی څخه هېڅ يو د دينايې مال او متاع سره علاقه نه لري په خاورو کېناستل دوی افتخار بولي، د دوی پاچا امير يا سپه سالار د يو عادل سپاهي په ډول دی يعنې د دوی ترمنځ د مشر او کشر فرق د

محاربې په حالت کې وجود نه لري، د بادار او مريي فرق نشي کېدلای ، کله چې د لمانځه وخت راورسيد هېڅوک مخالفت نه کوي، په اوبو باندې اودس کوي او له خپل الله جل جلاله ځخه زيات ويرېږي.

د روميانو پاچا (هرقل) له دغه سولې څخه ناراضه شو څرنګه چې مقوقيس دغه سوله بې د هرقل د مشورې او اجازې امضاء کړې وه، هرقل په غضب شو او مقوقيس يې د محاسبې او جزاء ورکولو په غرض خپل حضور ته راوغوښت د همدغو واقعاتو په جريان کې هرقل مړ شو او خپل دوه زامن يې په خپل ځای وليعهد وټاکل چې د يوه نوم قسطنيطين او د بل نوم هر قلوباش نومېده، وروسته له لږې مودې څخه قسطنيطين هم مړ شو، هرقل امپراطور مخکې له مرګ څخه داسې وصيت وکړ چې د ده ښځه هم بايدد حکومت په چارو کې له زامنو سره مرستياله وي، څرنګه چې د هرقل ښځه هم د جنګ په ځای په سولې راضي شوې وه، ځکه چې د دې د زوی لپاره د پاچاهۍ پاتې کېدو يوه لاره وه، هر کله چې د هرقل په وخت کې د مقوقيس قدرت او صلاحيت په قسطنطنيه کې محدود شوی و د دويم ځل لپاره بيا يې د حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه په قبلې شرايطو سوله وغوښته خو عمرو بن العاص رضي الله عنه سوله قبوله نه کړه، عمرو بن العاص رضي الله عنه د روميانو په مراکزو باندې د دوو لارو څخه چې بحري او هم ځمکنۍ وې حملې وکړې ترڅو چې د مسلمانانو لښکرې د نوبه ښارونو ته ورسيدې، عمرو بن العاص رضي الله عنه يو شمېر لښکر د برما او طرابلس د هېوادونو د فتحه کولو لپاره د هجرت په ۲۳ او ۶۴۵ م کال ولېږلې، په همدې ډول د مصر غربي او جنوبي سرحدونه په امن کې شو، پرته د اسکندرې څخه پرته چې د روميانو يوازينی بحري مرکز په مصر کې و او نور د هغوی لپاره څه پاتې نه شول.

همدارنګه روميانو په ټول قدرت سره تصميم ونيو، چې له دې ښار څخه دفاع وکړي حتى د دې ښار څخه دېوال چاپېره کړ چې ترڅو د دوی حکومت په مصر کې باقې پاتې شي د عمرو بن العاصرضي الله عنه لخوا د اسکندري په ښار باندې ځوانمردانه حملې شروع شوې، ترڅو چې اسلامي لښکري د دغه ښار په فتحه کولو هم بريالۍ شوي نوموړې فتحه په دوو کلونو کې پای ته ورسيد، عمرو بن العاصرضي الله عنه د خليفه په امر د بابليون د کلا په شاوخوا کې د نوې (جديد) ښار تهداب کېښود او په دغه ښار باندې د فسطاط نوم کېښود، په دغه ځای کې د خپل ځان او هم د لښکريانو د اوسېدولو لپاره ودانۍ جوړې کړې او ديو لوی جومات بنسټ [۱] يې هم دلته کېښود، چې دغه جومات په تاريخ کې لومړنی جومات دی، چې د عمرو بن عاص رضي الله عنه له خوا دلته جوړشو دلته د خليفه لخوا يو کانال هم جوړ شو چې رودنيل يې د سري بحيري سره ونښلاوه دغه هيوادونو د اسلامي هيوادونو د کرهنې او تجارت د پرمختګ له پاره لويه مرسته وکړه، عربستان يې د هر ډول تکليف په تېره د غلې د نشتوالي (قحطۍ) څخه يې وژغوره او دا کانال د امير المؤمنين په نهره سره ياد شو.

## د عمر رضي الله عنه اداري او نظامي چارې

په څه وخت کې چې دابوبکر صديقرضي الله عنه د خلافت په دوره کې مرتدين د نبوت مدعيان او هغو مفسدينو غوښتل چې د اسلامي دولت تجزيه او مسلمانان په تشويش کې واچوي، يو مخ له منځه محوه او نابود شول او د اسلامي دولت بنياد محکم او تثبيت شو، نو د عمررضي الله عنه يو ظابط حاکم، عادل او د دولت منافعو لپاره يې کلکه پاملرنه درلوده د دولت

---

۱- د دې جامع مسجد نوم عمرو يا جامع المتين دی.

اجتماعي وضعه، خزانې، محاربوي اسباب او سامان په دقت سره کنترول شو او د اسلامي دولت د پراخېدو لپاره يې شرايط مساعد شول، عمر رضي الله عنه د ټولنې اصلاح او د دولت احوال پوښتنه شروع کړه، مشروعات شامل د حکومت وو، په ديني او اجتماعي امورو کې فتوی صادري کړي ده، مثلاً: د قحطي په وخت کې د غله لاس نه قطع کول.

تاريخ ثابته کړي ده، چې عمر رضي الله عنه د خپل خلافت په دور کې داسې کارونه رائج کړل چې له ده څخه مخکې هيچا اجراء کړې نه و، مثلاً عمر رضي الله عنه لومړی سړی وو، چې د امير المؤمنين کلمه يې د خلفاء لپاره استعمال کړي او همدارنګه يې د لومړي ځل لپاره شل رکعته د تراويحو لمونځ د روژې په مياشت کې رواج کړ د عمر رضي الله عنه په خلافت کې د لومړي ځل لپاره هجري سنه شروع شوه، لومړی سړی دی چې د موقتي ښځې ازدواج منعه کړ، لومړی سړی دی، چې د شراب خور لپاره يې *اتيا* دُرې تعينې کړې، لومړنی سړی دی، چې د قيمت پلورل او د کم تلل د ورکولو لپاره يې محافظين په بازار کې مقرر کړل.

اداري اصلاحات

- د مالياتو انتظام يې د اقتصادي حالتو مطابق وټاکه د ټولو قبيلو او طائفو ماليات يې د هغوی له قدرت سره برابر او مساوي تعين کړې، همدارنګه هر کافر سړي باندې چې د جزيې ذمه وار او په اداء يې (ادا کولو) قادر و اګر که يهودي او که نصراني وو، په مساوي اندازې مقرره کړه، همدارنګه يې ښځې، ماشومان، سپين ږيري او معيوبين او هغه علماء او رهنما چې ګوشه نشين و، د جزيه له ورکولو څخه يې معاف کړل.
- دفترونو تعين: د دې لپاره چې د دولت ټول کارونه او امور ضبط او ثبت کړای شي، نو د وارداتو او صادراتو دفترونه يې جوړ کړل،

بعضې دفاتر خارج (دفاتر جزیه) او درېیم یې د بیت[۱] المال په نامه چې هغه یې د وزارت په نامه یاد کړ او د دغو دفاترو د اداره کولو لپاره یې یو شمېر عرب او یو شمېر د ښار اوسیدونکي خلک مؤظف کړل ځکه چې د دغو مناطقو خلک د اداري امورو په انتظام کې ډېر مهارت درلوده، کله چې د عمر رضي الله عنه د خلافت دوره شروع شوه، ایران، مصر، شام، فلسطین او داسې نور د اسلامي دولت جزء وګرځېدل داسې وخت راورسېد چې سلطنتي دوایرو یو ښه منظم سر او صورت وموند او هر ښار ته بېل بېل حاکم، قاضي د مالي مامور او داسې نور مقرر کړل، دا تېره لومړنۍ تېره ده چې په اسلامي حکومت کې د عمر رضي الله عنه په زمانې کې کېښودله شوه، چې د دغو حاکمانو، قاضیانو او نورو ملکي او که نظامي وو له بیت المال څخه یې تنخوا اخیسته او بې له دې نور حق نه درلوده، چې د مسلمانانو له مال څخه څه شی واخلي عمر رضي الله عنه د خلافت کارونو ته داسې پاملرنه درلوده، چې یو مامور هم له خپل حق څخه تېری نه شو کولای او نه یې پر چا ظلم او تېری کولای شول او هر شکایت به یې پخپله اورېده او ښه غوږ به یې ورته نیوه، څېړنې ته به پخپله شخصاً حاضر او حقاني باز خواست به یې کاوه، زیار یې کاوه چې د حاکمانو له لاسه هغو اهل ذمه و ته چې د اسلامي حکومت تابع ګرځېدلي او جزیه یې منلې وه، هیڅ ډول زیان او ضرر ورپېښ نشي، د ده حضور ته ورتګ هیڅ تکلیف نه درلوده هر سړي هر وخت کولای شول چې ورسره وګوري او خپل حق په ډېره زړه ورتیا وغواړي چوپړي او پهره دار په دروازه کې وجود نه درلوده.

عمر رضي الله عنه د خپلو ټولو حاکمانو، قاضیانو او نظامي مشرانو او

---

۱ - کله چې د بیت المال دفتر جوړ شو لومړنی سرپرست یې عبدالله بن ارقم رضي الله عنه تعین شو.

قومندانانو له شتمنۍ څخه پوره خبر وو، تر دې اندازې چې د مامورینو د شتمنۍ شمېر به يې ورسره کاوه، کله چې به دوی د خپلې شتمنۍ د حساب له ورکړې څخه عاجز شول سم له لاسه به يې امر وکړ چې له دوی څخه يې واخلي او بيت المال ته يې وسپاري، د خليفه دغه اقدام له امله ټول خلک د حاکمانو او نورو مستبدينو او مامورينو له ظلم او تېرې څخه خلاص او په ډېر ډاډه زړه به يې خپل کارونه کول.

د هجرت سنه [1] د عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت په دوره کې د مدينې لومړنۍ ورځې څخه راپديخوا تعين شوه، ځکه چې د دغه هجرت په وجه د اسلام دين قوت او نصرت وموند او هم د دغه هجرت په واسطه د اسلام دين پياوړی او د قريشو او يهودو له خوا په رسميت هم وپېژندل شو، نو د اسلام په تاريخ کې په ټولو کارونو باندې هجرت ته برتري ورکړای شوه.

**د عمر فاروق رضي الله عنه په دوره کې اسلامي فرهنګ:**

دجاهليت په زمانه کې د عربو اقوامو د قومي يووالي د نسبونو يووالی، قصائدو، اشعارو او داسې نورو کارونو زيات رواج درلوده، عمر رضي الله عنه هم په پورتينو افعالو کې د پوره برخې خاوندو، او د عربو زيات اشعار يې حفظ کړي وو، ځکه دغه عمل د ده په هغه وخت کې د ځوانمردۍ يو مثال و.

په همدې نسبت يې خپل زوی عبدالرحمن ته هم وويل: چې ای زويه! خپل نسب وپېژنه او صله رحمي کوه، ښه او نيک شعار حفظ کړه چې ستا د ادب معيار پورته ولاړ شي ځکه هر هغه څوک چې خپل نسب نه پېژني صله رحمي نه شي کولی او هر هغه څوک چې د اشعارو ښه والی حفظ نه

١- سيرة النبي محمد د ذبيح الله منصوري ژباړه.

کړي ادب هم ساتلی نه شي.
په دې کې هېڅ شک نشته چې عمر رضي الله عنه د اسلام په راوړلو د قران کريم او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سنتو د هغه فرهنګ او دانش زيات شو.
عمر رضي الله عنه د خپل وخت معلمينو ته اراشاد فرمايه: چې معلم بايد د لټوونکي د علم او تعليم سرچينه وي، د عمر رضي الله عنه پند او نصيحت يوازې قولي او نظري نه وه، بلکې عمل يې هم ورباندې کاوه او ويل به يې چې علم بايد له عمل سره يو ځای وي ترڅو چې عمل سره يوځای نشي کامله ثمره (ميوه) به ورنه کړي، عمر رضي الله عنه د بدني ورزش سره د جاهليت په زمانه او هم د اسلام په عصر کې علاقه درلوده او د دغه عادت لپاره يې هم خلک تحريک کول او د پهلوانی په مجلسونو کې به يې اشتراک کاوه او د اس ځغلولو په سياليو کې به يې برخه اخيسته او داسې عقيده يې درلوده چې د مسلمانانو د تقويت او د اسلام د نشر او اشاعت لپاره بدني ورزش او داس ځغلولو يوه وسيله هم کېدای شي، همدارنګه به يې زياتو ښارونو ته خطونه لېږل، چې خپل اولاد د اس ځغلولو د غشو په ويشتلو په اب بازی (لامبو وهلو) او په داسې نورو بدني ورزشونو کې تعليم يافته ځوانان ترييه کړي، ترڅو د جهاد په ډګر کې ګټه ورڅخه واخلي.

**د عمر رضي الله عنه شهادت:**

دعمر رضي الله عنه د شهادت په باره کې د سيرت کتابونو اقوال رانقل کړي دي، خو دلته هغه روايتونه چې زياتو علماوو يې تصديق کړی دی رانقل شوي دي.
د مغيره [۱] بن شعبة غلام ابولولو د زيات خراج په وجه د عمر رضي الله عنه حضور

۱- پورتني ټول روايتونه د محمد اسماعيل ابراهيم د تاريخ خلفاء څخه را نقل شوې دي.

ته حاضر شو او د عمر رضي الله عنه په حضور کې د دغه خراج د تخفیف په منظور غوښتنه وکړه او عمر رضي الله عنه یو څه وعده ورکړه او بیا یې د خراج د تخفیف په باره کې د مغیره سره وکتل او د خراج د تخفیف په هکله یې مغیره ته سپارښت وکړ.

او ځینې وایې، چې عمر رضي الله عنه د ابو لولو څخه د خراج په هکله پوښتنه وکړه چې ستا جزیه څومره ده، ابولولو وویل: چې د ورځې دوه درهمه دي، بیا عمر رضي الله عنه د ابولولو څخه پوښتنه وکړه چې تاسې څه کسب کوئ، ابو لولو وویل: زه نقاشي او اهنګري کوم، عمر رضي الله عنه وویل: زما په نظر ستا د فن او کسبونو په مقابل کې ستاجزیه زیاته نه ده.

وروسته له دې څخه ابو لولو په قهر شو او په زړه کې وویل: چې غیر زما څخه د عمر عدالت تمامه دنیا نیولې ده، نو وروسته له دې څخه یې د عمر رضي الله عنه د وژلو قصد وکړ او هغه دوه سره خنجر چې په زهرو سره لړلي شوی و چمتو کړ او د عمر رضي الله عنه د وژلو باعث شو.

په بل روایت کې ذکر شوي دي، چې ابو لؤلؤ د فارس مجوسي و او د نهاوند په جګړه کې بندي ا وبیا د مغیره بن شعبه غلام و.

په یو بل روایت کې رانقل شوي دي، چې ابو لؤ لؤ د دوو نورو ملګرو (جفینه مسیحي او هرمزان) چې د فارسیانو د لویو کورنیو له ډلې څخه و د فارس د دولت له سقوط څخه وروسته چې صلاحیت او قدرت یې لږ شوی و د خپل ژوند څخه ناراضه و او د خپل دولت د ختمېدو د انتقام په منظور یې تصمیم ونیو چې عمر رضي الله عنه ووژني، وایې چې ابو لؤلؤ د سهار له خوا جومات ته راغی او د عمر رضي الله عنه وروسته په صف کې ودرېد کله چې عمر رضي الله عنه تکبیر تحریمه ووایله، نو ابولؤلؤ په خلیفه حمله وکړه او هغه یې په دوه سره خنجر چې په لاس کې نیولی و شو شو ځایه پرزخمې کړ، چې یوه له هغوی څخه په خیټه کې ولګېد او سخت ټپې شو او عمر رضي الله عنه

ته حاضر شو او د عمر رضي الله عنه په حضور کې د دغه خراج د تخفیف په منظور غوښتنه وکړه او عمر رضي الله عنه یو څه وعده ورکړه او بیا یې د خراج د تخفیف په باره کې د مغیره سره وکتل او د خراج د تخفیف په هکله یې مغیره ته سپارښت وکړ.

او ځینې وایې، چې عمر رضي الله عنه د ابو لولو څخه د خراج په هکله پوښتنه وکړه چې ستا جزیه څومره ده، ابولولو وویل: چې د ورځې دوه درهمه دي، بیا عمر رضي الله عنه د ابولولو څخه پوښتنه وکړه چې تاسې څه کسب کوئ، ابو لولو وویل: زه نقاشي او اهنګري کوم، عمر رضي الله عنه وویل: زما په نظر ستا د فن او کسبونو په مقابل کې ستا جزیه زیاته نه ده.

وروسته له دې څخه ابو لولو په قهر شو او په زړه کې وویل: چې غیر زما څخه د عمر عدالت تمامه دنیا نیولې ده، نو وروسته له دې څخه یې د عمر رضي الله عنه د وژلو قصد وکړ او هغه دوه سره خنجر چې په زهرو سره لړلي شوي و چمتو کړ او د عمر رضي الله عنه د وژلو باعث شو.

په بل روایت کې ذکر شوي دي، چې ابو لؤلؤ د فارس مجوسي و او د نهاوند په جګړه کې بندي او بیا د مغیره بن شعبه غلام و.

په یو بل روایت کې رانقل شوي دي، چې ابو لؤ لؤ د دوو نورو ملګرو (جفینه مسیحي او هرمزان) چې د فارسیانو د لویو کورنیو له ډلې څخه و د فارس د دولت له سقوط څخه وروسته چې صلاحیت او قدرت یې لړ شوی و د خپل ژوند څخه ناراضه و او د خپل دولت د ختمېدو د انتقام په منظور یې تصمیم ونیو چې عمر رضي الله عنه ووژني، وایې چې ابو لؤلؤ د سهار له خوا جومات ته راغی او د عمر رضي الله عنه وروسته په صف کې ودرېد کله چې عمر رضي الله عنه تکبیر تحریمه ووایه، نو ابولؤلؤ په خلیفه حمله وکړه او هغه یې په دوه سره خنجر چې په لاس کې نیولی و څو څو ځایه پرزخمې کړ، چې یوه له هغوی څخه په خیټه کې ولګېد او سخت ټپي شو او عمر رضي الله عنه

په ځمکه پرېوت لمونځ کوونکو په جومات کې د دې د نيولو اقدام وکړ خو ابولؤلؤ مقاومت وکړ او ديارلس (۱۳) تنه نور يې ټپيان کړل په پای کې يو صحابي خپل ځادر پرې ورواچاوه او د هغه د تېښتې لاره يې بنده کړه، کله چې د ځان د خلاصون څخه بې هيلې شو په هماغه خنجر يې خپل ځان هم وواژه.

عمرؓ له جومات څخه کور ته راوړل شو او طبيب يې د علاج لپاره راغی طبيب غوښتل چې د خليفه زخمونه پاسمان او ويې ګنډي نو يو ګيلاس شيدي عمر فاروقؓ ورکړل شوي، ويې ليدل چې سپينې شيدي د هغه ګېډي زخم څخه بهر ته خارج شوي طبيب وويل: چې ای خليفه! د خلافت د امير لپاره امر وکړه عمرؓ درې ورځې ژوندی پاتې وه، څنګه چې پوه شو چې نه جوړېږم د خليفه ټاکلو لپاره يې هغه شوراته چې محمد ﷺ تر اخر وخته پورې ورڅخه خوشحاله وو، واک او صلاحيت ورکړ صحابه وو له خليفه څخه وغوښتل چې په خپل ځای خليفه تعين کړي خليفه ځواب ورکړ که چېرته زه بې له خليفه څخه له تاسې جلا شم، نو محمد ﷺ چې له ما څخه بهتر و دا کار يې کړی دی او که چېرته زه څوک خليفه تعين کړم پس ابوبکر صديقؓ چې زما څخه بهتر دی خليفه يې تعين کړی و د خليفه تعين او عدم تعين زما څخه سابقه لري او ويې فرمايل: که ابوعبيده [1] بن جراح ژوندی وای هغه به مې په خلافت ټاکلی وای، ځکه چې له پيغمبر ﷺ څخه مې اورېدلې و، چې ابو عبيده په امت کې امين دی.

او که د ابو حذيفه مريی سالم ژوندی وای هغه به مې په خلافت ټاکلی و،

---

۱- ابو عبيده بن جراح د شام د فتحې څخه وروسته د وبا مريضي وفات شوی دی، د محمد نيسيم شفق ليکنه، د اسلام څلور ستر قومندانان تاريخ

ځکه چې د ده په باره کې پیغمبر ﷺ فرمايلي و پرسالم الله جل جلاله ډېر ګران دی او له الله جل جلاله سره مینه لري.
د حاضرينو څخه يو چا وويل: ولې عبدالله بن عمر رضي الله عنه د دغه کار لپاره نه ټاکي په قهر سره يې وويل: چې الله جل جلاله دې مړ کړه تا د الله جل جلاله لپاره ونه ويل څوک چې ښځه نشي طلاقولی څرنګه به د خلافت کارونه انجام کړي د ده له دغې وينا څخه معلومېده چې ده نه غوښتل چې دغه کارته څوک وټاکي.
خو مسلمانان د خپل کار په اندېښنه کې شول اوپه ويره کې وو، چې کومه واقعه پېښه نه شي نو ډېر ټينګ شول چې بايد ارومرو په خپل ژوند کې خليفه وټاکي د دوی د ټينګار په نسبت عمر رضي الله عنه وفرمايل: د هغه چا له ټولنې څخه چې پيغمبر ﷺ د مړينې تروختته په ژوند کې ترې خوښ و د ځان لپاره يو خليفه وټاکم وروسته يې د دغو شپږو تنو چې د عشره مبشره څخه هم دي نومونه ياد کړل: علي بن ابی طالب رضي الله عنه عثمان بن عفان رضي الله عنه ، عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ، سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه زبير بن عوام رضي الله عنه ، طلحه بن عبيدالله رضي الله عنه او هم يې خپل زوی عبدالله ته وويل: چې د خليفه د ټاکلو په ټولنه کې ګډون وکړه خو د خلافت حق نه لري، عمر رضي الله عنه وروسته له لسو کالو او شپږو مياشتو خلافت څخه د محرم د مياشتې په لومړۍ ورځ په ۲۳ هجري کال کې په شهادت ورسيد او د رسول اکرم ﷺ د قبر ترڅنګ خاورو ته وسپارل شو، د حضرت صهيب [۱] رضي الله عنه په امامت يې د جنازې لمونځ اداء کړای شو.

۱ - د عبدالشکور فاروقي لکهنوي رحمه الله ليکنه ۱۵۰

## خلورم فصل

## ددريم خليفه د عثمان بن عفان رضي الله عنه د خلافت دوره

## ۲۳-۳۵ هجري کال، ۶۴۴م-۶۵۶م کال

عثمان بن عفان د اميه له قبيلې څخه و چې د نسب په لړ کې عبدالمناف د پيغمبر ﷺ ته رسيږي، د بي بي رقيه د محمد ﷺ له لور څخه يو زوی درلوده چې نوم يې عبدالله و، نو اسم کنيه يې ابو عبدالله او په دې نسبت چې رسول الله ﷺ دوه لورګانې يې يوه پر بله پسې نکاح کړې وې، نو د دې لقب نوم ذی النورين وټاکل شو.

عثمان رضي الله عنه د ابوبکر صديق رضي الله عنه د غوښتنې په واسطه په اسلام مشرف شوی دی، عثمان رضي الله عنه د قريشو د ډېر ظلم او تېرې په وجه لومړی ځل له خپلې ميرمنې (بي بي رقيې) سره حبشې ته هجرت وکړ بيا يې د مدينې د هجرت په وخت کې مدينې ته هجرت وفرمايه.

عثمان رضي الله عنه ډېر پرهېزګار، نرم او د ښه خوی او پاک نفس خاوندو، په ټولو ښو کارونو کې تل غټه برخه اخيسته د الله جل جلاله په لار او د اسلام په خدمت کې د هېڅ ډول زيار څخه که د سر او که د مال ځان نه سپماوه د مسلمانانو لپاره يې ډېر ځايونه واخيستل او د وقف په توګه يې دوی ته ورکړل.

**د عثمان رضي الله عنه تولد او نسب:**

عثمان بن عفان رضي الله عنه ابو العاص بن اميه بن عبدالشمس بن عبدالمناف و او د قريشو څخه يې د اموي کورنۍ پورې ارتباط درلوده، مور يې اروی بنت کريز بنت ربيعه بن حبيب بن عبدالشمس بن عبدمناف لور وه او د عثمان رضي الله عنه د مور (انا) بيضاء او په ام حکيم بنت عبدالمطلب مشهوره او د نبي کريم ﷺ ترور (عمه) وه، عثمان رضي الله عنه د مور او پلار له خوا د نبي

کریمﷺ سره قريب النسب وه.
عثمان رضی الله عنه پنځه کاله وروسته د محمدﷺ څخه د طايف په ښار کې وزیږېده، عثمان رضی الله عنه لومړني مسلمانانو له ډولې څخه دی، د اسلام په لاره کې ډېر زيات تکليفونه د خپل کاکا حکيم بن عاص په واسطه ليدلي دي ، يوه ورځ حکيم بن عاص ډېر په قهر شو او عثمان رضی الله عنه يې د پښو او لاسو څخه وتاړه او په زندان کې بندي کړ حکيم بن عاص ورته وويل: ترڅو پورې چې د اسلام څخه منکر او د پلار او نيکه دين قبول نه کړي تر هغه پورې به تا له زندان څخه خوشي نه کړم، خو عثمان رضی الله عنه له تهديد او تعدا څخه ونه ويرېده او د دوی پېروي قبوله نه کړه، کله چې کاکا يې په عثمان رضی الله عنه کې د اسلام کلکوالی او پخه عقيده مشاهده کړه نو بيا يې له زندان څخه بېرته خوشي کړ.
يو مؤرخ ليکلي دي، کله چې عثمان رضی الله عنه د تجارت څخه بېرته راوګرځېد له يو چاڅخه يې واورېد چې محمدﷺ د قريشو په قوم کې په پيغمبری مبعوث شوی دی، څرنګه چې د عثمان رضی الله عنه ترور يوه کاهنه او فالبينه ښځه وه، د محمدﷺ د نبوت خبر يې عثمان رضی الله عنه ته ورساوه، عثمان رضی الله عنه چې د محمدﷺ له نبوت څخه خبر شو د ابوبکر صديق رضی الله عنه حضور ته حاضر شو ترڅو حقيقت معلوم کړي، ابوبکر تاکېد وکړ او ويې ويل: چې دا پيغمبر برحق دی، ما پر دغه پيغمبر ايمان راوړی دی او عثمان رضی الله عنه هم اسلام قبول کړ په دې وخت کې عثمان رضی الله عنه پنځه ديرش (۳۵) کلن و، عثمان رضی الله عنه د ابوبکر صديق رضی الله عنه سره يوځای د محمدﷺ حضور ته حاضر شول، ترڅو د محمدﷺ په مبارک لاس تعهد وکړي.
دعثمان رضی الله عنه پلار عفان هم يو لوی تجار او همېشه به يې د شام په لورې تجارت کاوه، چې بيا د همدغو سفرونو په جريان کې وفات شو، عثمان رضی الله عنه ته له پلار څخه وروسته هغه زياته سرمايه په ميراث کې

پاتې شوه، عثمان رضي الله عنه هم د پلار په شان تجارت کاوه او په دغه تجارت کې يې زيات ګټه په لاس راوړه چې په مکه کې د لويو سرمايه دارانو له ډلې څخه شمېرل کېده، عثمان رضي الله عنه يوازې په اسلام راوړلو اکتفاء ونه کړه بلکې د نبي کريم ﷺ سره يې په ټولو کارونو کې ځان شريک کړ، عثمان رضي الله عنه ټول عمر په مدينه منوره کې د محمد ﷺ د جهاد په چارو کې او هم د غزواتو په هکله مشوره او صحبت کاوه، ترڅو چې سرور کاينات محمد ﷺ له دنيا څخه رحلت وکړ.

## د عثمان رضي الله عنه پرورش او کورنۍ

عثمان رضي الله عنه د امويانو په کورنۍ کې چې انتهاء يې اميه ته رسېږي تولد او روزل شوی دی، د امويانو کورنۍ د هاشم د حقيقې ورور عبدالشمس څخه چې د رسول کريم ﷺ درېيم خليفه نيکه دی شروع کېږي، د امويانو او هاشم کورنۍ ترمنځ کلک اختلاف موجود وو، د بني هاشم کورنۍ ديني خلکو ته مايله وه او ديني عقايدو ته يې زياته توجه درلوده، د بيت الله خدمت يې کاوه، د بيت الله نګهبان او حاجيان ته يې د اوبو په ورکولو افتخار کاوه او

د مسافرينو سره يې رابطه او معامله درلوده، مګر امويان د دنيوي ساز او سامان، سياسي قدرت او د تجارت د کارونو او په اولسونو باندې د حاکميت د لرلو په غرض په دې لټه کې وو چې اموي کورنۍ نه غوښتل چې د بيت الله د خدمت صلاحيت د بني هاشم له کورنۍ سره وي نو په دغه وخت کې د دواړو کورنيو ترمنځ اختلافات زيات شو د دغه اختلافاتو او رقابتونو واقعات په ډېرو اخبارو کېښوکې ذکر شوي دي، چې يو د هغوی له جملې څخه په لاندې ډول ذکر شوي دي يو وخت حرب بن اميه او د عبدالمطلب بن هاشم په منځ کې اختلاف پيدا شو، د دغه دعوی د پريکړې لپاره نفيل ته چې د عمر رضي الله عنه نيکه دی ورغلل نفيل

حرب ته وويل: ته د يو داسې سړي سره دعوه کوي چې هغه پر تا باندې حق په جانب دی، اولاد هم ډېر لري په خلکو کې لحاظ او محبوبيت او له بلې خوا په تا قدرت او ځوانمردي هم زياته لري.

د دوی د دغه اختلافاتو اصلي وجه چې مخکې له دې واقعې څخه يې درلوده تاريخونه په لاندې ډول توضيح کوي.

څه وخت چې اميه وغوښتل چې د قحط سالۍ په وخت کې يو ځل بيا د خپل رقيب۱ هاشم سره د خوراکې موادو د ويشلو په هکله رقابت وکړي، نو اميه نشو کولای چې دغه کار سرته ورسوي، نو يو ځل بيا د محاکمې لپاره د خزاعه کاهن ته چې په غسفان کې اوسېده ورغلل او دا شرايط يې کېښود چې هر چا پنځوس (۵۰) اوښان په مکه کې ذبحه نه کړل بايد چې شل(۲۰) کال له مخه د تبعيد په ډول ولاړ شي کاهن داسې ځواب ورکړ، په هغه وخت کې د کاهنينو مسجع الفاظ په دې ډول و.

و القمر الباهر والکواکب الزاهر والغمام الماطر و ما بالجو من طائر و ما اعتدی بعلم مسافر من مسجد وغائر لقد سبق هاشم ای المائر اول منه و اخرو ابو همهمه بذالک خابر))

ژباړه: زما دې قسم په سپوږمۍ تا بنا که او ستورو ځلېدونکو او په وريځو ورېدونکو او په هغه څه چې پرنده ظاهر وي او په هغه څه چې مسافر په علم سره اماده کوي، د لوړوالي او ښکته والي څخه په تحقيق سره هاشم قرباني ورکړه په اول او اخر کې دا خبر د ابو همهمه له خوا ورکړ شو.

راويان وايي: هاشم پنځوس (۵۰) اوښان واخيستل هغه يې حلال کړل او

---

۱- هاشم به همېشه د قحطۍ په وخت کې د مکې د فقيرانو او غريبو خلکو باندې خوراکې مواد توضيح کول. د علامه عبدالشکور فاروقي ليکنه، تاريخ خلفاء راشدين.

غوښه يې د مکې په حا ضرينو وويشله اميه بيا د شام خواته ولاړ او هلته دوه کاله پاتې شو او د شام له خلکو سره وصل او خپل ارتباط يې محکم کړل.

عثمان رضي الله عنه د يتيمانه ژوند په لړ کې نشو نمو وکړه او د مور په کور کې (پلندر) سره د عقبه بن معيط د سرپرستۍ لاندې کاوه، مګر عثمان رضي الله عنه بې له عقبه بن معيط له مشورې څخه ايمان راوړ او مسلمان شو، عقبه بن معيط د عثمان رضي الله عنه مور ته شکايت وکړ بې له دې څخه چې د عثمان رضي الله عنه مور د ايمان د راوړلو په وجه ناراضه شي د عقبه په څواب کې داسې وويل: څوک له ما څخه محمد صلى الله عليه وسلم ته ډېر نږدې دی چې له هغه څخه به ځان او مال قربان کړي عثمان رضي الله عنه د عقبه د دغه اعمالو په وجه ډېر تنګ شوی و او همدا علت و چې عثمان رضي الله عنه د خپلو اقاربو او خپلوانو سره پيوست او يوځای شو.

## د عثمان رضي الله عنه اوصاف

دعثمان رضي الله عنه د عصر او زمانې شخصيتونه په دغو صفتونو اجماع او اتفاق درلوده، چې عثمان د زيات زکاوت او د حياء کثير څښتن و، عثمان رضي الله عنه منځنۍ ونه درلودله د ښايسته صورت او جګې پوزې لرونکی و په رخسار يې د دانو په شان علايم او داغونه ليدل کېده زيات وېښتان او د اوږدې ږيرې لرونکی و، د عثمان رضي الله عنه هم عصر د ده د اوصافو په يوه برخه کې وايي: چې عثمان رضي الله عنه د خوشحاله روحيې خوږو عاداتو او حسن معاشره او د پراخې تندې خاوند و.

عثمان رضي الله عنه له کوچنيوالي څخه تر بوډا توب تر وخت پورې د زياتې سرمايې او د زيات مال څښتن و، د مال د سخاوت او ويش له نظره کثير العطاء وو، د ده دغه صفت د جاهليت او هم د اسلام په دور کې موجود و، د اسلام او مسلمانانو لپاره يې زياتې مالي قربانۍ ورکړي دي، د

مثال په توګه هغه کوهی په بیه واخیست چې د کوم کوهي اوبه چې د یو یهودي له خوا په مسلمانانو خرڅېدې او بیا یې د دغه کوهي۱ اوبه مسلمانانو ته د وقف په توګه (فی سبیل الله) وسپاره. د دغه عمل په وجه محمد ﷺ په عثمان ﷺ باندې د جنت زیری وکړ، همدارنګه یې یو کاروان۲ چې د خوراکي موادو څخه بار و د وچ کالۍ په وخت کې له تجار څخه په بیه واخیست یو تجار په همدغه وخت کې حاضر شو، عثمان ﷺ ته یې وویل: چې زه دوه چنده ګټه د دا مال درکوم دغم مال ماته راکړه، مګر عثمان ﷺ دا دنیوي ګټه خوښه نه کړه او نوموړي مال یې په مسلمانانو وړیا وویشه.

د تبوک په غزا کې کله چې رسول اکرم ﷺ امر وکړ چې د تبوک غزا د جنګي موادو او تجهیزاتو لپاره یو څه مال راټول کړي، نو عثمان ﷺ سل (۱۰۰) اوښان په مال باندې بار کړل، او د رسول اکرم ﷺ په حضور کې یې حاضر کړل محمد ﷺ په دې وخت کې خپل لاسونه پورته او ویې ویل: چې ای الله جل جلاله زه د عثمان ﷺ څخه را ضي یم، ای الله جل جلاله ته هم راضي شي، درې ځله یې دا الفاظ تکرار کړل، کوم وخت چې محمد ﷺ خپله لور بې بې رقیه عثمان ﷺ ته په نکاح ورکړې وه او هغه وفات شوه نو بیا محمد ﷺ بله لور ام کلثوم په نکاح ورکړه، نو کله چې دا هم وفات شوه، نو محمد ﷺ وویل: که چېرته زما بله لور وای نو هغه به مې هم عثمان ﷺ ته ورکړې وای.

رسول اکرم ﷺ د عثمان ﷺ په هکله داسې فرمایلي دي: هر نبي په جنت کې یو ملګری لري او زما ملګری په جنت کې عثمان ﷺ دی همدارنګه

---

۱- دا کوهی بیر رومه یا محل رومه په نامه مشهور وه.

۲ - په دا کاروان کې زر(۱۰۰۰) اوښان له مال څخه بار وو، د ازالة الخفاء تاریخ په حواله ۱۶۴.

يې فرمايلي دي، چې ملايکي د عثمان ﷺ څخه شرم کوي.
عثمان ﷺ ټول عمر د شپې د تهجد لمونځ او د ورځې به يې د قران کريم ختم کاوه او همېشه به يې بې د ممنوع ورځو څخه روژه يانې صايم الدهر وه په هغه ورځ چې شهيد کېده هم روژه و، په هر جمعه کې يو غلام ازاداوه په کومه جمعه کې چې به غلام پيدا نه شو نو بيا به يې راتلونکي جمعي ته دوه غلامان ازادول، په نبوي جومات ساحه پخوا ډېره لږه وه، بيا د دې جومات شاوخوا ځمکه د مالک له خوا خرڅېده، محمد ﷺ وفرمايل: که هرڅوا دا ځمکه واخيسته او د مسجد ساحه يې پراخه کړه د ته به الله جل جلاله جنت ورکړي.
عثمان ﷺ دا ځمکه په شل زره (۲۰۰۰۰) يا په پنځه ويشت (۲۵۰۰۰) زره درهمو واخېسته او جومات ته يې د وقف په توګه ورکړه عثمان ﷺ د هغه خلکو له ډلې څخه و چې رسول اکرم ﷺ په ټول ژوند کې ورڅخه را ضي و عثمان ﷺ الهي وحي ليکونکی هم و اوپه عشره مبشره کې هم شامل و.
وروسته له هجرت څخه د غزواتو په سلسله کې عثمان ﷺ له بدر څخه تر تبوک پورې په ټولو غزواتو کې د محمد ﷺ سره شرکت کړی دی، په کوم وخت کې چې د بدر غزا واقع شوه، په دې وخت کې رقيه رضي الله تعالی عنها زياته مريضه وه رسول اکرم ﷺ وفرمايل: ای عثمانه! د رقيه رضي الله تعالی عنها تداوې وکړه تاته به الله جل جلاله د بدريانو[1] ثواب درکړي، همدارنګه عثمان ﷺ د محمد ﷺ په امر دبدر دغزا څخه معطل شو او د بي‌بي رقيې په تداوی شروع وکړه وروسته د بدر د فتحې څخه محمد ﷺ عثمان ﷺ د بدريانو په صف کې حساب او د عنيمت په مال

۱- تاريخ ازالة الخفاء ۱۶۵

کې سهيم وګرځاوه، د احد او هم د حديبې په صلحه کې شرکت درلوده د حديبې په صلحه کې د مکې د کفارو په واسطه اسير شو او کله چې عثمان ﷛ د اسارت خبر محمد ﷺ ته راورسيد محمد ﷺ د نورو صحابه و سره يوځاى د عثمان ﷛ د انتقام لپاره بيعت وکړ او بيت الرضوان په همدغه ځاى کې واقع شو.

### د عثمان ﷛ اولاد او کورنۍ

عثمان ﷛ د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د لور (ام کلثوم) له وفات څخه وروسته د نهو ښځو سره ازدواج کړى دى کله چې عثمان ﷛ شهيد شو دري ښځې ( بې بې نائله، فاخته او رمله ) يې په نکاح کې وي، عثمان ﷛ نهه زامن او دوه لوڼې درلودي مګر د محمد ﷺ له لورګانو يې اولاد نه درلوده، عبدالله چې د بې بې رقيه څخه تولد شوى و، خو په شپږ کلنۍ کې وفات شو د عثمان ﷛ نور ټول اولاد له نورو ښځو څخه و، مګر کوم تاريخي اثار نه لري، دعثمان ﷛ لپاره د رسول اکرم ﷺ له لورګانو څخه اولاد د انقطاع يوه عظيمه عمرازي وه.

### د عثمان ﷛ د خلافت لپاره انتخاب کول

کله چې عمر ﷛ د ابولؤلؤ مجوسې لخوا (په واسطه) د سهار په لمانځه کې سخت زخمې شو بيا د لمونځ کوونکو له خوا کورته نقل کړاى شو، دري ورځې ژندى و، د دې دريو ورځو په موده کې شکمن و چې ايا له ځان څخه وروسته خليفه وټاکي او که نه.

وروسته بيا يې د خلافت مسئلي ته پام او مايل شو او ويې فرمايل: که چېرته زه خيلفه تعين نه کړى و، نو محمد ﷺ چې زما څخه بهتر و خليفه تعين کړى نه و او که چېرته زه خليفه تعين کړم نو ابوبکر صديق ﷛ چې زما څخه بهتر و خليفه تعين کړم، نو عمر ﷛ په دغه مسئله کې متحير

او حیران و، وروسته له ډېر فکر او سنجش څخه یې دا فیصله وکړه، که چېرته زه خلیفه ونه ټاکم امکان لري، چې زما څخه وروسته د اختلاف او انشقاق سبب وګرځي.
بیا یې د شپږو کسانو نومونه چې د عشره او مبشره څخه هم وو، نومونه ذکر کړل او خپل زوی عبدالله ته یې وویل: چې ته هم د شوری غړی کېدای شي، خو د خلافت حق نه لري، چې شپږ تنه د عثمان بن عفان رضی الله عنه، علي ابی طالب رضی الله عنه، عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه، سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه، زبیر بن عوام رضی الله عنه او طلحه بن عبدالله رضی الله عنه څخه عبارت دي.
دغه اوه تنه د مسورېن مخزومه په کور کې سره راټول شول، خو دوی ترمنځ یو لږ اختلافات ایجاد شول، کله چې عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه دا حال ولید داسې پېشنهاد یې وکړ، چې څوک د خلافت حق لري خپل حق دی بل ته وروبخښي ترڅو کار پرمخ ولاړ شي، تر ټولو دمخه عبدالرحمن رضی الله عنه له خپل حق څخه تېر شو.
وروسته بیا زبیر رضی الله عنه وفرمایل: چې ما خپل اختیار علی ته ورکړ، طلحه رضی الله عنه وویل: ما خپل اختیار حضرت عثمان رضی الله عنه ته وروسپاره.
سعد رضی الله عنه وویل: چې ما خپل اختیار عبدالرحمن رضی الله عنه ته ورکړ، بیا عبدالرحمن رضی الله عنه وویل: چې د علي رضی الله عنه او عثمان رضی الله عنه څخه چې هرڅوک خلافت نه غواړي د خلافت د انتخاب اختیار د هغه دی په دغه وخت کې دواړه خاموش شول، عبدالرحمن وویل: زه خلافت نه غواړم او د خلافت د انتخاب حق ماته راوسپارئ، ترڅو د ستاسو دواړو په منځ کې افضل تر ستاسې څخه غوره کړم، همدارنګه علی رضی الله عنه او عثمان رضی الله عنه دواړو

عبدالرحمن رضي الله عنه[1] ته واک ورکړ او تر دريو ورځو پورې مهلت هم ورته ورکړ شو.

څرنګه چې د حج ورځې وې او د مدينې اکثره خلک د حج په منظور د حج لپاره راغلي و او له حج څخه فارغ شول.

نو عبدالرحمن په پټ او سري ډول سره له هره يوه څخه رايې واخيستې او وې ويل: چې دوه داسې کسان چې علي رضي الله عنه ته په عثمان رضي الله عنه برتري ورکړي ومې نه موندل.

پرته د اختلاف او نزاع څخه عثمان رضي الله عنه منتخب شو او ټولو مسلمانانو ورسره لاس په لاس بيعت وکړ عبدالرحمن بن عوف په نبوي مسجد کې سره د نورو مسلمانانو عثمان رضي الله عنه ته وويل: که له تاسره بيعت وکړو دا وعده راکړه، چې د الله جل جلاله او د پيغمبر صلى الله عليه وسلم په لاره به سم او هغه څه چې ابوبکر صديق رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه کول ته به هم د هغه سياست تعقيبوې او هغه به کوې.

دلته عثمان رضي الله عنه په همدې ډول دوی ته ډاډ ورکړ لومړی څوک چې د بيعت لاس يې وروغزاوه، عبدالرحمن رضي الله عنه و، وروسته بيا نورو مسلمانانو د بيعت لور ته وروداننګل کله چې ټولو مسلمانانو له عثمان رضي الله عنه سره بيعت وکړ عثمان رضي الله عنه سمدسي منبر ته وخوت.

### د عثمان رضي الله عنه لومړۍ خطبه

عثمان رضي الله عنه وروسته له حمد اوثنا څخه داسې وفرمايل:

تاسې په فانې نړۍ کې اوسئ د دې نړۍ ژوند د مغروری ژوند نه دی ګورئ چې و مو نه غلوي پخوا ترمرګه د اخرت کارو ته مخ واوړئ، هيڅ

[1]- عبدالرحمن د عثمان رضي الله عنه د مور اوخی و،د علامه عبدالشکور فاروقي ليکنه، تاريخ خلفاء راشدين.

وخت له الله ﷻ څخه مه غافلیږئ او مه یې هېروئ هېڅکله له اطاعت څخه غاړه مه غړوئ، کوم وخت چې عثمان رضي الله عنه خطبه خلاصه کړه نو د راتلونکي خلافت د سیاست په هکله یې کومه یادآوري ونه کړه او دابوبکر صدیق رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه د سیاست په هکله یې هم کوم نظر ښکاره نه کړ، دلته د علی رضي الله عنه د اعتراض لاندې راغی د عثمان رضي الله عنه ټوله خطبه د نصیحت، تقوی او د دینداری په الفاظو کې خلاصه کړه، کومه لومړۍ واقعه چې د عثمان رضي الله عنه په خلافت کې پېښه شوه، هغه عبدالله بن عمر رضي الله عنه محاکمه وه، وایې چې کله عثمان رضي الله عنه ابولؤلؤ له لاسه ټپي شو، عبدالرحمن بن ابوبکر وویل: تېره ورځ د ابولؤلؤ هرمزان او جفینه مسیحي ترڅنګ تېریدم څنګه چې زه یې ولیدم ډېر وارخطاء شول، ابو لؤلؤ چټک چټک روان و له ډېرې وارخطایې هماغه دوه سري خنجر له تخرګه ولویده عبدالله بن عمر رضي الله عنه چې دغه خبر واورېد بې له کومه فکره په غضب شو او هرمزان یې وواژه، عبدالله هم ونیول شو او بندي یې کړ ترڅو خلیفه وټاکل شوو کله چې عثمان رضي الله عنه خلیفه شو عبدالله یې د محاکمې لپاره د ده حضور ته راوست عثمان رضي الله عنه په دې باره کې له صحابه و سره مشوره وکړه علي رضي الله عنه وویل: چې د هرمزان په قتل کې دی عبدالله قصاص شي خو ډېر مهاجرین او انصار د دې نظریې مخالف وو دوی ویل: چې د دا ښه نه ده چې پرون یې پلار ووژل شو او نن یې زوی قصاص شي، بیا عثمان رضي الله عنه له خپل شخصي مال څخه د هغه خون بها ورکړه ځکه چې نه یې غوښتل چې د خپل خلافت اجرات د یوه نامتو خلیفه د زوی د وینو په تویولو چې لا تر اوسه یې لا د پلار د تختې اوبه نه دي وچې شوي خلافت پرانیزي کله چې دا واقعه د عثمان رضي الله عنه د خوښې حل او فصل شوه نو بیا د علي رضي الله عنه اعتراض مورد وګرځېدخو په دې ځای کې خلک دوه ډلې شو ځکه چې دوی ویل چې عثمان رضي الله عنه له

نرمۍ شخه کار واخيست او د اسلام د اصولو پابندي يې ونه کړه او بلې ډلې د عثمان رضي الله عنه د سخاوت بخشش او د نرم سياست مرسته يې وکړه.

## د عثمان رضي الله عنه د دورې فتوحات

د عثمان رضي الله عنه د خلافت په دوره کې دوه ډوله فتوحات رامنځ ته شوي دي.

۱. هغه ځايونه چې د عمر رضي الله عنه د خلافت په دوره کې فتحه شوي وه او بيا يې بغاوت وکړ.

۲. هغه مناطق چې د اسلام د دين له رڼا څخه محروم پاتې وو.

څرنګه چې پخوا رامعلومه شوه، چې د ايران يوه غټه برخه د عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت په دوره کې د مسلمانانو په لاس فتحه شوه د ساسانيانو وروستنی پادشاه (درېيم يزدګرد) خراسان ته وتښتېده.

او د خليفه لخوا عبدالله بن عامر رضي الله عنه د بصري والي وټاکل شو، د همدې سوق الجيشی په اثر مروه، خوارزم، تالقان او بلخ د اسلامي امپراطورۍ جز وبلل شو، يزدګرد وروسته د ډېرې دربدرۍ د امو د سيند په غاړه د يوه ژرنده ګړي۱ له لاسه ووژل شو.

په همدې نسبت د ساساني کورنۍ چې په دوه سوه شپږ ويشت (۲۲۶) ميلادي کال د ارد شير بابکان په لاس جوړه شوې وه له منځه ولاړه.

يزيد بن ابو سفيان د مشق د فتحې لپاره د ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت په دوره کې ټاکلی شوی و، وروسته تر دې چې هغه ښار مسلمانانو فتحه کړ د هغه ځای حکومت هم يزيد ته وسپارل شو، چې د عمر رضي الله عنه د خلافت په دوره کې هم دا دنده هم د ده پر غاړه وه، کله چې دی وفات شو د هغه ځای حکومت د عمر فاروق رضي الله عنه له خوا معاويه رضي الله عنه بن ابوسفيان ته وسپارل شو، د عثمان په خلافت کې معاويه ډېرې سوبې وکړې پر

---

۱ يا په بل عبارت د افغانستان د يو ملي مشر (ماهويه يا ماهوي) په واسطه ووژل شو

کوچنۍ اسیا یې یرغل وکړ او تر عموري پورې ورانديې ولاړ او حبیب بن مسلمه یې د ارغستان او قفقاز لور ته ولیږه، چې د تفلس تر ښاره پورې پرمختګ وکړ.

په همدغه لړ کې د عثمان رضي الله عنه اسلامي فتوحاتو لمن د ده په دوره کې د قفقاز تر مرکز پورې وغوړېده او د طبرستان پر فتحه بریالي شول، په دې هم معاویه رضي الله عنه قناعت ونه کړ، نو د خلیفه په اجازه یې یوه بحري قوه له بېړیو څخه چمتو کړه او د قبرس پر ټاپو یې چې د رومیانو بحري مرکز و یرغل وکړ او هغه یې ونیو او د هغه ځای خلکو دا ومنله چې په کال کې اوه زره (۷۰۰۰) دیناره مسلمانانو ته باج ورکړي، دا د قبرس فتحه لومړنۍ فتحه وه چې د بحر له لارې د مسلمانانو په برخه شوه، بیا نو وروسته تر دې اسلامي بحري قوي ورو ورو پسې پرمختګ کاوه.

**په مصر د رومیانو یرغل:**

ښکاره خبره ده چې عمرو بن عاص رضي الله عنه په څلورو زرو سپاهیانو مصر فتحه کړ او ترڅو چې فاروق رضي الله عنه ژوندی و د مصر حکومت د ده په لاس کې و او په ښه توګه یې د دې ځای اداره کوله یوازې یو ځل په اسکندریه کې یو څه شورش پېښ شو خو عمرو بن عاص رضي الله عنه په ډېره هوسایي د هغه بغاوت اور مړ کړ او کراره کراري شوه کله چې عثمان رضي الله عنه خلیفه شو د عمرو بن عاص رضي الله عنه سره یې د خراج مسئله کې یو څه مخالفت پېښ شو، ځکه عثمان رضي الله عنه ډېر مال غوښته عمرو بن عاص رضي الله عنه په ځواب کې داسې ورته ولیکل نه راته ښکاري چې له دې ښځې اوښې اوښ لاس ته راوړم.

په همدې نسبت عثمان رضي الله عنه عمرو بن عاص رضي الله عنه د مصر د حکومت څخه معزول او په عوض یې عبدالله بن اسرح رضي الله عنه چې د ده رضاعي ورور و د هغه ځای په حکومت مقرر کړ دلته چې دغه تجربه لرونکې سردار برطرف

شو نو د ده برطرفۍ خلک په شورش راوستل رومیانو غوښتل چې خپل له لاسه وتلی اقتدار بېرته لاس ته راوړي.

نو یو لړ جګړې ځینې په وچه او ځینې په بحر کې پېښې شوې، په دې جګړو کې رومیانو خپله بحریه قوه چې شپږ سوه (۶۰۰) بېړۍ پکې وې د مصر خواته په کار واچولې او د فوج ستره قومنداني پخپله د امپراطور په لاس کې وه، عبدالله بن اسرح د معاویه رضي الله عنه په مرسته د دښمن مخې ته ورغی، وروسته له یوې خونړۍ جګړې فتحه د مسلمانانو په برخه شوه، چې ډېرې بېړۍ د مسلمانانو لاس ته ورغلې او په همدې جګړه کې د مسلمانانو د بحري قوي لوړوالی ثابت شو.

دویمه جګړه په افریقا کې پېښه شوه، عثمان رضي الله عنه یو لوی لښکر چې د مهاجرینو او انصارو څخه تشکیل شوی وه، دا جنګ د قادسیې او د یرموک د جنګونو څخه وروسته د اسلام په تاریخ کې یو ډېر لوی جنګ دی او په تاریخ کې د حرب عباد الله په نامه شهرت لري.

د عبدالله بن سعد په مشرۍ ورولېږه او د ته یې فرمان وروسپاره چې په دې جنګ کې چې هرڅومره غنیمت په لاس درغی په سلو کې څلوېښت (۴۰) برخې ستا دي، په دې وخت کې د روم د امپراطورۍ لخوا په افریقا کې جرجیر نامی حاکم مقرر کړی شوی و، د طرابلس څخه یې توطنجه پورې حکومت کاوه، نوموړي حاکم ډېر مغرور او متکبر شخص و د مسلمانانو د مقابلې لپاره یې یو لک او شل زره (۱۲۰۰۰۰) سواره برابر کړي و، عثمان رضي الله عنه هم په عبدالله بن سعد رضي الله عنه سربېره عبدالله بن عباس رضي الله عنه او عبدالله بن عمر رضي الله عنه هم د رومیانو مقابلې ته ورولېږل دا لښکر چې اجتماعي ډول سره افریقا ته ورداخل شو د دواړو لښکر ترمنځ څلوېښت ورځې جنګ دوام وکړ، دا جنګ هره ورځ له سهار څخه تر ماسپښین پورې دوام درلوده، ترڅو چې دواړه لښکرې ستومانه شوې او

په خپلو خيمو کې د استراحت په غرض ارام شول، وروسته له يو څو ورځو څخه عثمان ﷺ يو بل تازه لښکر د عبدالله بن زبير ﷺ په مشرۍ د دوی کومک ته اعزام کړای شو، کله چې نوموړی لښکر افريقا ته ورسيد د نورو اسلامي لښکرو لخوا د تکبير په نارو بدرګه شول او د اسلام نورو لښکرو ته هم يو څه اطمنان حاصل شو، په دې ورځو کې د جرجير لخوا اعلاميه نشر شوي وه،که هرچا د عبدالله بن سعد ﷺ سر راوړو د هغه لپاره يو لک يا سل زره اشرفۍ او زما لور (جرجير لور) به انعام ورکړای شي.

همدارنګه عبدالله بن زبير ﷺ اعلان وکړ که هر چا د جرجير سر راوړو د هغه لپاره به سل زره اشرفۍ او د جرجير لور په انعام ورکړای شي.

بيا يې لښکر په دوو برخو تقسيم کړ يوه برخه يې په خيمو کې د استراحت لپاره معطل او بله برخه يې د جنګ ډګر ته ولېږل کله چې ماسپښين شو دواړه ډلې ستومانې شوې دواړ ډلې بيا د استراحت لپاره خپلو ارامګاوو ته وګرځېدي.

عبدالله بن زبير ﷺ هغه برخه فوځ چې تر اوسه پورې په خيمه کې ارام کاوه، فرمان ورکړ، چې د دښمن د مقابلې لپاره اماده شي او د دښمن په داسې مرحله کې حصار کړي چې ارام ونه کړي کله چې د دښمن لښکري د خيمو په طرف د ارام لپاره رواني وي د اسلام لښکرو په دغه وخت کې د جرجير لښکرې معاصره کړي او د سخت جنګ کولو څخه وروسته جرجير د عبدالله بن زبير ﷺ په واسطه ووژل شو او زيات غنيمتونه د مجاهدينو لاس ته ورغلل وروسته د خمس له ورکولو څخه پاتې غنيمت تقسيم شو، هر سواره سپاهي ته دري زره (٣٠٠٠) او هر پياده ته زر (١٠٠٠) اشرفۍ غنيمت ورسيد او يو لک (١٠٠٠٠٠) اشرفۍ او د جرجير لور عبدالله بن زبير ﷺ په برخه ورسيده.

دغه جنګ ته حرب (۱) عبادالله نوم په دې غرض ورکړای شوی، دی چې د جنګ سردار عبدالله بن سعد او رئيس ميمنه عبدالله بن عمر رضي الله عنه او افسر ميسره عبدالله بن زبير رضي الله عنه او په مقدمة الجيش باندې عبدالله بن زبير رضي الله عنه مقرر و.

د افريقا له فتحه کولو څخه وروسته د اسلام لښکرو په مغرب کې استقرار وموند په دې ځای کې هم يو لوی جنګ سره مخامخ شو چې بالاخره د مغرب ښار طرابلس او د اندلس مناطق د مسلمانانو په تصرف کې راغلل او د اسلام د مبين دين وړانګې په دې ځای کې خپرې شوې.

**د درېيم خليفه په وخت کې افغانستان ته د اسلام راتګ**

کله چې د اسلام مبين دين وړانګو په عربستان کې په خپرېدو پيل وکړ، زموږ د مملکت اوضاع هم لکه د نړۍ د نورو ممالکو اوضاعو په څېر څه له مادي او څه له معنوي پلوه ډېره ويجاړه او له لويو بحرانونو (پېښو) سره مخامخ وه.

د دين له پلوه هم چې د ملي يووالي يو لوی عامل بلل شوی دی په ډېرو کړکيچونو او پريشانيو اخته وو، سربېره پر دې چې کوچني کوچني دينونه نور هم وو، خو زر دشتي دين د بودايانو دين او برهمني دين د دې مملکت مختلف ځايونه نيولي وو، زردشتي دين چې له همدې خاورې پيدا دی، په دا وخت کې بودايي دين په مقابل کې ورو ورو لويديځو سيمو ته په مخ روان و، برهمنې دين هم ورو ورو په انکشاف و په تېره بيا د هندوکش په سهلي برخو کې يې د بودايي دين سره مقابله او رقابت درلوده، شيوايي طريقې په ختيځ لوري او افتاب پرستې (امتراء دين) چې د اوستاد اتش پرستۍ يو جزء و په زميندار کې ډېر

۱- د علامه عبدالشکور فاروقي لکهنوي ليکنه سيرت خلفاء راشدين ۱۷۰

نفوذ وموند، هر چا د خپل دين په نامه مملکت په مختلفو ځايونو کې ټاکلي معبدونه جوړ کړل چې د هغې له جملې څخه د بلخ ناواوی هار (نوبهار) زوز يا د زمينداړو د اتش پرستۍ معبد (ادونای) د کاپيسا د افتاب پرستۍ معبد او (سورياى) د کابل د خيرخانې د کوتل برهمنې معبد او د لوګر (سکاوند) سجاوند هندوي معبد د دې هېواد لويو عبادت خانو څخه شمېرل کېدل.

د ملي يووالي يو بل لوی عامل پرته له مذهب څخه ژبه هم بلل کېږي، بيا هم له دې سببه له دې هېواد اوسېدونکي له ډېرو مشکلاتو سره مخامخ وو.

د دې هېواد جغرافيايي جوړښت په تېره بيا د دغو لوړو لوړو غرونو دا هېواد په ډېر درو ويشلی چې هره دره او ولايت يې د مختلفو اوبو او هوا تراغېزې لاندې و او بل دا چې د دوی ترمنځ هېڅ ډول اړيکې يعنې تګ او راتګ موجود نه و نو ژبې يې هم جلا او بېلې بېلې لهجې درلودي، د هېواد اقتصادي، سياسي او علمي وضعيت هم د قناعت وړ نه و.

کله چې عربانو د اسلام د دين په خپرولو پيل وکړ تر ټولو دمخه يې د دې دوو ګاونډيو هېوادونو ته لکه ايران او بزنطين مخ واړاوه چې ډېر ژر يې په ډېره اسانۍ سره ايران درې وړې او له هغه ځايه د ساسانيانو په وروستې پاچا دريیم يزدګرد پسې چې افغانستان ته راتښتېدلی و او پناه يې راوړې وه دلته راغلل، په دې وخت کې زموږ د مملکت شمالي او لويديزي خواوي د پردو يعنې د ساسانيانو او چينيانو په لاس کې وي، د دې خاورې حاکمان او نور خلک د پرديو له تسلط څخه ډېر خواشينې او په کړاو کې وو، دوی نشو کولای چې له داسې قوي خلکو سره مقابله وکړي او له خپلې خاورې څخه يې وباسي نو تل يې فرصت او وخت ته کتلو د ساسانيانو پر دولت د عربو يرغلونه راغلل د دې ځای خلکو د

جګړې ډګر ته له لرې ستر کې نيولي او په همدې فکر کې وو چې که الله جل جلاله وکړي د دښمن کار په يو پلو ته کړي يزدګرد وروسته له دې چې فارسيانو له ټينګار (مقاومت) څخه بې هيلې د هجرت ۲۲ کال خراسان ته راغی.

د عربو شل زره فوځ د احنف بن قيس په مشرۍ له بصرې او کوفې څخه په يزدګرد پسې خراسان ته راغی او تر مروي پورې وړاندې ولاړل کله چې يزدګرد د امو دسيند پر غاړه ووژل شو او په ۳۱ هجري کال کې تغر تول شو، په افغانستان کې يو بل شخص چې د هراتي قارن په نامه مشهور دی د هجرت په ۳۲ کال په بادغيس او په هرات کې يو بل منظم لښکر د عربو مقابلې ته تيار کړ او د عربو په عسکري مرکز يعنې نيشاپور يې حمله وکړه، دده حمله په داسې زور کې وه، چې د عربو قيس بن هشيم ورسره مقاومت ونشو کولای او په پاکې د بصري لورته ولاړ په دې وخت کې د عربو څخه د هرات ولايت او د نيشاپور يو څه برخې ونيولې.

د دويم ځل لپاره د عربو يو تکړه قومندان چې عبدالله بن خازم نوميده د قارن قبيلې ته راووت په داسې حال کې د قارن نيم لښکر ويده او نيم لښکر ويښ وه د قارن په لښکر يې توره تيار جوړه کړه او داسې ترې لاره ورکه کړه چې ټول سره وارخطاء شول دلته پخپله قارن په اس سپور د جګړې ډګر ته راغی او خپله مېړانه يې ښکاره کړه څو په پای کې ووژل شو، د سيستان خلک هم د قارن په شان د خپلې خاورې د مدافعه کولو په خاطر د عربو مقابلې ته په جګړه راووتل، نو د دواړو ترمنځ کلکې جګړې ونښتې کله به سستانيان او کله به عريان بريالي کېدل دريم خليفه دې ته اړ شو چې د خپلو ډېرو سترو جنرالانو څخه يو تن چې عبدالرحمن بن سمرة رضي الله عنه و سره له ډېر لښکرو او يو شمېر فقهي علماوو د

اسلامي دین د خپرېدو او فتحې لپاره سیستان ته ورولېږه، دا سړی تر زرنج پورې وړاندې ولاړ بیا یې د سیستان د دښتې او د هلمند، ارغنداب، زابل او کابل فتحې لپاره یوه لویه نقشه جوړه او د هغې په عملي کولو یې پیل کړ کله چې د زرنج ښار یې فتحه کړ او ویې نیو عبدالرحمن د بست او زمینداور په لوري وړاندې ولاړ او د دوران په ښار کې چې د زمینداور مرکزو له خلکو سره کلکه جګړه وکړه نوموړي خلک د زور غره ته وتښتېدل خو په پای کې د سولې هیله وکړه، عبدالرحمن د زور په معبد کې د لمر د رب النوعي مجسمه (بت) چې یوازې د سرو زرو څخه جوړ او سترګې یې د یا قوتو وي لاس ته راوست له هغه ځایه بیا قندهار ته ولاړ، وروسته له دې چې هغه یې فتحه کړ مخامخ زابلستان په لور وخوځید دا لومړی ځل دی چې د عربو سپاره غزني ته راغلل او له هغه ځایه بیا کابل ته راغلل خو عربو په کابل کې کوم مهم د یادونې وړکار نه دی کړی.

کابلشاه لږه لنډه جګړه وکړه، خو بیا یې د سولې تړون لاسلیک او عبدالرحمن بېرته سیستان ته ولاړ، په دغه وخت کې د امیر معاویه ﵁ او علي ﵁ په منځ کې اړو دوړ شروع وو، د عربو نفوذ هم په دغه ځای کې مخ په ځوړ شو سره له دې چې د عثمان ﵁ په وخت کې زیات فتوحات شوي دي، خو د عمر فاروق ﵁ له فتوحاتو سره نشي مقایسه کېدای.

بغاوتونه: د همدان خلکو بغاوت وکړ دا علاقه د حضرت مغیرة بن شبعة ﵁ په واسطه بېرته ارامه شوه همدارنګه درې خلکو بغاوت وکړ، دا بغاوت د دویم ځل لپاره د ابو موسی اشعري او براء بن عازب ﵁ په واسطه ارام شو په اسکندریه کې هم د بغاوت اورونه بل شول مګر د عمرو بن العاص ﵁ په کوښښونو خاموش شول. همدارنګه د اذربایجان

خلکو هم په غدارۍ شروع وکړه مګر د ولید بن عقبهرضي الله عنه د کوښښ په واسطه بیا مسلمانان په دې ځای باندې مسلط شول.

### د عثمانرضي الله عنه سیاست

د عمثانرضي الله عنه لومړني شپږ کلونه په ډېره قرارۍ پای ته ورسیدل چې اسلامي لښکري په هر ګوټ کې په لویو فتوحاتو بریالۍ او داسلامي ممالکو کرهنې او تجارت ډېر پرمختګ وکړ د مسلمانانو د ژوندانه سویه هم خورا لوړه شوه، دلته ټول خلک هوسا غوښتونکي او عیاش شول چې رخې او عناد د دوی ترمنځ لاره وموندله په مدینه کې هم د خلکو ژوند په ساده ډول پاتې نه شو لوړې لوړې ماڼۍ جوړې کړي د مال د ډېرښت فکر سیالۍ او مقابله د دوی ترمنځ پیدا شوه.

عمر فاروقرضي الله عنه داسې فکر درلوده او کوښښ یې کاوه چې د عربو مسلمانان باید ډېر سخت سري او د هر کړاو د مخنیوي لپاره کلک ولاړ وي، ترڅو د تل لپاره کامیابي او موفقیت د دوی په برخه وي، په همدې نسبت یې په نیول شو ممالکو کې د ځمکو اخیستل منعه کړل او هېڅوک یې نه پرېښودل چې لوړې او ښکلې ماڼۍ جوړې کړي او د ډېرو وینځو خاوندان شي او که به هر چا د دې د نظریاتو خلاف ګټ کاوه او غاړه به یې غړوله نو دې به ډېره سخته رویه غوره کوله چې له هغو څخه یوه دا ده، کله چې د بیت المقدس په سفر کې اسلامي سرداران ولیدل چې ډېرې فاخري جامې یې اغوستې وي ډېر په قهر شو او هغوی یې په هېداد ورسول، ځکه د داسې عقیده درلوده که مسلمانان ډېر هوسا او مستریح شي نو اخلاق یې فاسدېږي او ښې ریښې او ښه خویونه یې له منځه ځي، په همدې نسبت د دوی د حالاتو څارنوال و چې څوک زښته ډېره بډای نشي یوازې د خپل ضرورت په اندازه د شتمنۍ خاوند وي او همدارنګه عمررضي الله عنه اجازه نه ورکوله چې عرب په هغه نیول شوو ممالکو

کې تل ميشت وي ترڅو د عربو ملي يووالی سره ونه شيندل شي او د اسلام سربښندوونکي سره تيت او پرک نشي او په ډېره هوسايي وکولای شي چې خپله نقشه عملي کړي، خو بالمقابل عثمان رضي الله عنه ډېر حليم او د نرم زړه خاوند و، چې خلکو د دې له نرمۍ او حلم څخه بده استفاده کوله، دې برخلاف د فاروق رضي الله عنه خلکو ته اجازه ورکړه چې هر چېرته اوسي او هرڅومره شتمنی، چې په اسلام کې ورته جواز ورکړای شوي وي، لاس ته راوړئ او هر څومره مينځي چې او مريونه چې پيدا کوئ احتيار لري، دلته د ځان ځانۍ د ګټې بازار داسې تود شو چې منافعو په مقابل کې ملي منافع تر پښو لاندې کولې نو د عربو د ملي يووالي مزي وشليده او د اتحاد چوکات يې دړې وړې شو سربېره پر دې په دې دوره کې د هغو صحابه و شمېر چې پيغمبر يې ليدلی او له وينا څخه يې ګټې اخيستې وې هم لږ شوي وو يو څه لږ شمېر چې پاتې وو هغوی هم د بوډا توب په نسبت له دنيا څخه لاس اخيستی او ګوښه ژوند يې غوره کړی وو، نوی نسل هم دومره په اسلامي فضليتونو نه و ښايسته شوی، تاريخ ليکي عثمان رضي الله عنه د خپل قوم سره خورا د نرمۍ او مراعات څخه کار اخيسته که څه هم له شخصي مال څخه به يې له دوی سره مرسته کوله خو بيا هم خلکو دا وضعيت نه خوښاوه او دی به يې د خپلې کورنۍ طرفدار باله عثمان رضي الله عنه زيات غني او د کثير المال څښتن و، نو نوموړې مال به يې پخپل ځان او اهل و عيال او هم يې په نورو خلکو خرج کاوه او په دې مال يې چې الله جل جلاله ورته اعطاء کړی و، بخيلي نه کوله او اسوده زنده ګي يې درلوده، همېشه يې بهترين خوراک استعمالوه او ډېر نظيف او فاخره لباس يې اغوسته او په هغه کورونو کې زنده ګې درلوده چې د

تېرېو او اهکو (۱) په واسطه محکم شوی وو، چې د چينو د اوبو لرونکي هم وو، عثمان ﷛ د دنيا د سياست مخالف وو د فقر څخه يې کنار ګيري او د دنيا د مال څخه يې استفاده کوله شايد دځينو حسد کوونکو د انتقاد علت د عثمان ﷛ د سياست په هکله همدغه وي، عثمان ﷛ د دنيا مال او متاع څخه د استفادي په غرض له دې ايت څخه استدلال کاوه:

﴿قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللهِ الَّتِيْٓ اَخْرَجَ لِعِبَادِهٖ وَ الطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزْقِ﴾

ژباړه: ای محمده ! دوی ته ووايه چا د الله جل جلاله هغه ښکلا حرامه کړېده چې هغه د خپلو بندګانو له پاره راويستلې وه او چا د خدای ښبل شوي پاک شيان منعه کړل

مسعود په خپل تاريخ کې ذکر کړي دي هغه کسانو چې د مدينې منورې څخه نورو ښارونو ته نقل مکان کړی دی او هلته مستقر شوي دي د هغوی له جملې څخه زبير بن عوام دی چې ډېر مال، ثروت او په زيات تعداد منازل او زراعتي ځمکې جمعه کړي وي. وايې کله چې زبير بن عوام ﷛ وفات شو د ده نغده سرمايه پنځوس زره (۵۰۰۰۰) ديناره وه، همدارنګه طلحه بن عبيدالله تيمي ﷛ چې ډېر زيبا او فاخره تعميرونه يې درلودل چې ورځنی لاس ته راتلونکی عايدات په عراق کې زر(۱۰۰۰) ديناره و.

په همدې ترتيب عبدالرحمن زهدي چې يو ډېر لوی تعمير يې جوړ کړی و، چې په طبيله کې سل (۱۰۰) عدده اسونه او زر(۱۰۰۰) عدده اوښان او

---

۱- د ځينو محدثينو په عقيده شايد حضرت عثمان ﷛ د دغه حديث په استناد نرمې او نظيفې جامې اغوستې چې: ان الله جميل ويحب الجمال رواه مسلم۹۷ د محمد اسماعيل ابراهيم ليکنه تاريخ خلفاء راشدين ۸۷.
سورع اعراف ۳۲ ايت.

لس زره (١٠٠٠٠) يې پسونه درلودل چې وروسته د د له مرګ څخه بيا تركه شول، همدارنګه سعيد ابن مسيب وايې كله چې زيد بن ثابت وفات شو د ده طلا او نقره د وارثانو له خوا د تقسيم په وخت كې په تبر ميده ميده شوه، چې تقريباً د يو لک (١٠٠٠٠٠) دينارو په معادل قيمت كېده.

غير د ځمكې، تعميراتو او د نور اموالو څخه يې پورتنی قيمت درلوده، داسې نور زياتو اصحابو د خليفه په اجازه له مدينې څخه نورو ښارونو ته نقل مكان كړی وه او زياته سرمايه يې جمعه كړې وه.

مګر د بالمقابل يوه بله ډله چې غريبه بېچاره او هېڅ معاون او مددګار يې نه درلوده او عثمان رضي الله عنه ټول مال او دارايې په بيت المال كې جمع كوله. دغه ډله خلک چې مجاهدين له اطرافو څخه د غنيمت د مال لپاره راتلل نو.هغوی ته به ويل كېده چې د غنيمت مال د جهاد د.تورې څخه محروم شمېرل كېدل. د وخت واليانو او حاكمانو به د مجاهدينو مال او حساب غصب كاوه او دا مال به يې د بيت المال ګڼه سره د دې چې مجاهدينو به د غنيمت مال او بيت المال دواړه د مجاهدينو حق باله او ويل به يې دا د حكومت مال نه دی.

كله چې دغه مستضعف خلک د خليفه د حاكمانو نه ناراضه شول نو دوی هم د خليفه د مخالفينو په صف كې ودرېدل او دخلافت په مقابل كې يې قيام وكړ او عبدالله بن سباء منافق ته د تحريک د اچولو ښكاره لاره پيدا او لا تقويه شوه، چې بيا خليفه د دې قيام د خاموش كولو څخه عاجز و.

تاريخ ليكي د خليفه له كارونو څخه چې د خلكو د كلک تنقيد وړ او په پای كې د د شهادت سبب شو بل دا دليل و چې د مروان پلار د فراريدلو امر يې فسخه او بېرته يې مدينې ته راوست ځكه دا هغه شخص و چې حضرت پيغمبر ﷺ له مدينې څخه شړلی او جاسوسي يې هم د پيغمبر

ﷺ په حضور کې ثابته وه، ابوبکر صدیق رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه د پیغمبر ﷺ د حکم په منلو د هغه راتګ مدینې ته بېرته ونه مانه خو کله چې د عثمان رضی الله عنه د خلافت دور شروع شو یوازې دا نه چې د مروان پلار یې مدینې ته راوغوښت بلکې پخپله مروان یې هم خپل منشي او مهر برادر مقرر کړ د دغه اور د لګولو او تازه کولو یوازینی سبب عبدالله بن سباء و او عثمان رضی الله عنه د مروان د پلار د عفوې په ارتباط دا حدیث دلیل نیولی و. ( لا یرحم الله من لم یرحم الناس)

### عبدالله ابن سباء

عبدالله ابن سبا مشهور په ابن سوداء و دا په ختنه یهودي او په اصل کې د یمن اوسېدونکی و او د عثمان رضی الله عنه په دور کې یې اسلام ظاهر کړ مګر په حقیقت کې منافق او په باطن کې مشرک و، د علي رضی الله عنه په ګټه یې تبلیغات شروع کړل او علي رضی الله عنه یې د خلافت حقدار وباله او د خلکو په منځ کې یې د علی رضی الله عنه عادات او اوصاف بیانول دا عمل د مسلمانانو په منځ کې د اختلاف او بې اتفاقۍ د ایجاد یوه لویه وسیله ده او د علي رضی الله عنه په نفعه یې جعلي او خودساخته حدیث جوړول او ویل به یې: اِنَّ لِکُلِّ نَبِيٍّ وَصِيٌّ . وَکَانَ عَلِيٌّ وَصِيَّ مُحَمَّدٍ:

ژباړه: هر نبي یو وصي لري او محمد ﷺ وصي علي رضی الله عنه دی.

څرنګه چې محمد ﷺ خاتم الا نبیاء دی نو علي رضی الله عنه هم خاتم اوصیاء دی.

عبدالله ابن سباء په دغو ناوړه تحریکاتو او تبلیغاتو مسلمانان دغه کار ته اماده کړل چې د خلافت حق یوازې د علي دی او عثمان رضی الله عنه ناحقه د خلافت واګې په لاس کې نیولي دي.

همدارنګه ابن سباء دا عقیده درلوده چې نبي کریم ﷺ دوه مرتبې دنیا ته

ظهور کوي او د دې ايت څخه يې استدلال کاوه:

﴿إِنَّ الَّذِي فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لَرَادُّكَ إِلَىٰ مَعَادٍ﴾

ژباړه: عبدالله ابن سباء په دا استدلال کې له حده زيات خطاء شوی دی او دا مخالف استدلال د ټولو مفسرينو څخه مخالف استدلال وه.

په اصل کې له دعوت څخه مراد محمد ﷺ بېرته مکې معظمې ته راتګ دی او يا دا مطلب چې مکه فتحه کېدونکې وه او رښتيا چې بيا مکه فتحه شوه او مؤمنان په مکه حاکمان وګرځېدل او يا مراد له معاد څخه مرګ، قيامت او يا جنت دی، چې الله جل جلاله به ضرور تاسې دغو ځايونو ته ورسوي، عبدالله ابن سباء د بصرې، مصر، کوفې او د مشق خواته ولاړ او خلک به يې د خليفه پر ضد تحريکول او د خلکو په مخ کې د درواغو ويلو په واسطه خلک راپارول او ويل به يې: څرنګه کېدای شي چې د رسول الله ﷺ وصي دی موجود وي چې د خلافت حق يوازې د اهل بيتو دی او دوی دې د خلافت له دربار څخه لرې وي.

## د عثمان رضي الله عنه شهادت

دعثمان رضي الله عنه د شهادت له عواملوڅخه يو د مصر والي له خوا د مصر په خلکو باندې د ظلم او تېري نيتجه ده لکه څرنګه چې روايت دی چې وايې عبدالله ابن سعد ابي اسرح د مصر حاکم د قدرت په وخت کې د مصر په خاوره کې يو شخص په قتل سره ورسيد چې د دې په وجه يوه ډله مسلمانان خليفه ته په شکايت راغلل او له خليفه يې وغوښتل چې نوموړي حاکم د مصر له حکومت څخه معزول او په عوض يې دويم نفر د مصر د حکومت لپاره ارسال کړي، خليفه هم د دوی په مشوره محمد بن ابوبکر رضي الله عنه د دې کار لپاره مقرر يا انتخاب کړ.

له مدينې څخه محمد بن ابوبکر رضي الله عنه سره د مصريانو د هغه ډلې څه مزل

کولو څخه وروسته د استراحت په غرض په يوه ځای کې معطل شول، ګوري چې يو بل نفر په اس سپور او له دوی سره يوځای چې کله له دوی څخه مخکې او کله وروسته کېږي روان دی، مصريانو دا شخص ونيو او له دې څخه يې تحقيقات او پلټنه پيل کړه ده په ځواب کې وويل: چې زه د خلافت د دربار قاصد يم کله يې چې نوموړی تلاشي کړو ګوري چې يو خط د يو بوتل (مشوانۍ) په داخل کې بند دی، غواړي چې نوموړی خط د مصر حاکم عبدالله بن سعد ته ورسوي، په يو روايت په دغه خط ليکل شوي وو:

کله چې نوموړی شخص (محمد بن ابوبکر رضي الله عنه) در ورسيد په قتل سره يې ورسوه.

او په بل روايت چې وايي: ( د نوموړي شخص پښې[۱] او لاسونه پريکړه.

کوم وخت چې نوموړی خط (ليک) مصريانو او هم محمد بن ابوبکر ولوست ډېر په غوسه بېرته د مدينې لورته وخوځېدل.

ځينې مؤرخين ليکي: چې شايد په ليک کې د فقبل لفظ په فقُتُل باندې سهواً ليکل شوی وي. والله اعلم

په هر ترتيب کله چې مصريان مدينې ته راغلل، نوموړي دعلي رضي الله عنه حضور ته ورغلل او بيا د عثمان رضي الله عنه حضورته حاضر شول.

د عثمان رضي الله عنه څخه يې پوښتنه وکړه چې ای خليفه ازه د حکومت لپاره لېږل شوی وم او که د مرګ لپاره خليفه ورته وويل: د حکومت لپاره.

محمد بن ابوبکر رضي الله عنه له مصريانو سره يوځای په دې مجلس کې دا ليک راوويست او د خليفه په مخ کې يې کېښود چې د خلافت د مهر په واسطه مهر شوی هم دی، خليفه ډېر زيات متاثر او بيا يې وويل: چې زما

۱- پورتني تول روايات د ازالة الخفاء په تاريخ کې په مفصل ډول ذکر شوي دي.

دې پر الله جل جلاله قسم وي چې زه نه د دې ليک او نه د دې مهر څخه خبر يم خو خبر دلته په هر ترتيب د مصريانو او خليفه ترمنځ بې اعتمادي رامنځ ته شوه، مصريانو وويل: چې نوموړې کار ستا د منشي يعنې مروان په واسطه سرته رسيدلى دى او دا منشي موږ ته راکړه چې په قتل سره يې ورسوو.

خليفه د دوى د دې غوښتنې څخه انکار وکړ، همدارنګه د عبدالله بن سباء په تحريک د بصري، کوفې او دمصر خلکو هم هجوم راوړ او د خليفه دربار يې محاصره کړ، خليفه د يو څه وعده ورکولو څخه وروسته شورشيان راخوشي کړل، عثمان رضي الله عنه دفعتاً خپل مشاورين (حاکمان او واليان) د مختلفو ښارو څخه راوغوښتل او له دوى سره په دې هکله مشوره وکړه چې د ملت د ارامولو لپاره د څه حاکم، عبدالله بن سعد ابن ابي اسرح د مصر حاکم عبدالله ابن عامر د بصري حاکم او سعد ابن عاص د کوفې حاکم ټول د خلافت دربار ته حاضر شول، عثمان رضي الله عنه وفرمايل: چې هر امام وزير او مشاور لري، زما وزيران او مشاورين تاسې ياستئ تاسې ګورئ چې ملت څه کوي او څه غواړي او وايې چې دا حاکمان او يا د دغو حاکمانو اعمال معزول کړه اوس تاسې په دې هکله فکر، انديشه، غور او اجتهاد وکړئ ماته مشوره راکړئ چې بايد څه وشي، عبدالله بن عامر وويل: چې ټول خلک په صلاح مجهز کړه او د دوى په مقابل کې د جنګ اعلان وکړه او په جنګ يې مشغول کړه، سعد ابن عاص رضي الله عنه وويل: چې د فساد کوونکو ريښې او فساد ختم کړه.

امير معاويه رضي الله عنه وويل: چې هر حاکم بايد په خپلو منطقو کې د فتنه اچوونکو په څېر تلاش وکړي او په هره طريقه چې وي بايد فتنه اچوونکي ختم کړي.

عبدالله ابن سعد ابن اسرح نظر ورکړ چې ټول خلک د دربار خوا ته تمه

کوونکي دي خليفه بايد د دوی راضي او د بيت المال څخه ورته بايد څه ورکړل شي، ترڅو د دوی د انتقام جويي څخه منحرف شي، کله چې پورتنۍ مشوري خليفه واورېدي، نو دوی ته يې دستور ورکړ چې حاکمان بايد خپل سياست بدل او بهتر کړي او د دولت اداره بايد محکمه کړي او د دولت په حقونو بايد سخت وي او سست نه شي، حاکمان د خپل ځای کار ته ولاړل، خليفه د دولت د حاکمانو د خپل ځای کار ته ولاړل، خليفه د دولت د حاکمانو له مشورې څخه وروسته لوی لوی صحابه او د منطقې بزرګان راوغوښتل او له دوی سره يې د ملت د ارامولو په هکله مشوره وغوښته، په دغه مجلس کې دحضرت عثمان رضي الله عنه او د خلکو ترمنځ اختلاف د نظر پيدا شو، هيڅ تصميم ونه نيول شو، خليفه د خپل سياست څخه دفاع وکړه او د خپل سياست د تطبيقولو او محکموالي په غرض يې اظهار نظر وکړ بالاخره خاتمه د جلسې په دې ټکو پای ته ورسيده، هر څه کې چې خير دی په هغې بايد عمل وشي او حقيقت دا دی چې عثمان رضي الله عنه دين او ملت ته مخلص و او د مسلمانانو د دينو او حفاظت سره زياته مينه او رغبت درلوده.

مګر دا داسې مرحله وه، چې په دې وخت کې اجتماعي، اقتصادي، فرهنګي او د ژوند عمومي سطحې داسې تغير ميندلی وه، چې د ابوبکر صديق رضي الله عنه اوعمر رضي الله عنه له خلافت سره يې په کلي ډول فرق درلوده او د دغې وضعې د منځه وړلو لپاره زيات کار ته ضرورت و درېيم ځل لپاره خليفه د مشورې په غرض يوائې علي رضي الله عنه د خلافت دربار ته راوغوښت او د علي رضي الله عنه څخه مشوره وغوښته او هغه ته يې پورتني جريانات او واقعات بيان کړل علي رضي الله عنه په ځواب کې وويل: ما څو ځله په دې هکله تاته نصيحت وکړ، چې اوضاع اصلاح او د خلکو شکايتونه رفعه کړه، ما وليدل چې تا له ماسره موافقه وکړه، مګر وروسته بيا دخپل قول څخه

وکرځېدي او د مروان بن حکم او د سعيد ابن عاص رضي الله عنه او د ابن عامر او معاويه رضي الله عنه د تاثير لاندې راغلي او د هغو اطاعت دې قبول کړ، عثمان رضي الله عنه وويل: چې زه اوس له تاسره قول او تعهد کوم چې زه ستا اطاعت کوم او له هغوی څخه عصيان وروسته له دې څخه علي رضي الله عنه کوښښ وکړ چې هغه هجوم کوونکي چې د خلافت دربار په شاوخوا کې راجمعه شوي وه قانع او د خپل ملکونو په طرف يې ولېږل او له هغوی سره يې وعده وکړه چې خليفه د ستاسو ټولو غوښتنو ته مثبت ځواب وايي بيا علي رضي الله عنه د عثمان رضي الله عنه څخه وغوښتل چې د حاضرينو په مخ کې خپله بيانيه او خطابه اعلان کړي.

عثمان رضي الله عنه د حاضرينو په حضور کې وويل: هر چا چې سهوه کړې وي بايد توبه وباسي او هرڅوک چې خطاء شوې وي بايد استعفاء وکړي او همېشه په هلاکت کې پاتې نه شي او هر څوک، چې ظلم کوي د حق څخه لري دي زه اولنی شخص يم چې وعظ قبلوونکي شوم او د الله جل جلاله څخه بخشش غواړم او هغه څه مې چې کول د الله جل جلاله له لور رجوع کوم وروسته د زيات وعظ کولو څخه د خلکو زړونه نرم شول او حتی بعضي له هغوی څخه وژړل.

د حضرت عثمان دغه حکيمانه وينا په خلکو زيات تاثير وکړ او نږدې وه چې ثمره ورکړي، مروان بن حکم د خطبې د اورېدو په وخت کې حاضر نه و کله چې راغی او د خليفه له خطبې څخه خبر شو نو دغه خطبه يې د خلافت سستي او ضعف وګڼله او د حضرت عثمان رضي الله عنه څخه يې د خبرو اجازه وغوښته او ويې ويل: ای خلکو! تاسې په دغه ځای کې څه کوئ؟ ايا تاسې راجمع شوي ياستئ چې دلته غازت وکړئ او د قدرت واکې زموږ څخه واخلئ، له دغه ځای څخه خارج شئ او خپلو کورونو ته وګرځئ، هغه څه چې زما په لاس کې دي زه د هغوی، د اجراء او ساتلو

ځخه عاجز نه یم، په دغه وخت کې خلک زیات په غصه او په غضب شول او د مدینې خلک هم د دغه عمل په وجه ډېر ناراحته شول انقلاب کوونکي په هیجاني حالت د حضرت عثمان رضي الله عنه په شاوخوا راجمع شول او په خلیفه باندې د خپلو مطالبو د اجراء په منظور یوه تعهد نامه ولیکله او بیا یې په مرګ تهدید کړ زیات وخت نه و تېر شوی چې انقلاب کوونکو د خلیفه په کور هجوم راوړو او د عثمان رضي الله عنه کور یې محاصره کړ، خلیفه اواز وکړ، چې ای خلکو! که هر چا زما له ضرر ځخه ډډه وکړه هغه په امان کې دی، اکثره خلک د خپلوکورونو په طرف ولاړل،عثمان رضي الله عنه په مدینه کې خپل مشاورین راوغوښتل او بیا یې ورسره مشوره وکړه، بیا علي رضي الله عنه راوغوښت د علي رضي الله عنه ځخه یې بیا همکاري وغوښته او ورته یې وویل: ای ابوالحسن! تا ولیدل چې خلک ما په مرګ ویره وي، زه له تاسره تعهد کوم، کوم کارونه چې زما په نزد غوره او معقول نه دي زه یې ترک کوم او هغه څه چې دوی غواړي زه اجراء کوم اګر که زما په مرګ هم تمام شي، بیا علي رضي الله عنه بېرون راووت او خلکو ته یې وویل: چې خلیفه زما سره تعهد وکړ تاسې اوس د کورونو په طرف ولاړ شئ، دړې ورځې یې ورځخه وعده واخیسته خو متاسفانه په خپلو وعدو بریالي نشو، بیا انقلاب کوونکو هجوم راوړو او د عثمان رضي الله عنه کور[1] یې محاصره کړ حتی چې اوبه یې هم پرې بندي کړې

---

۱-کله چې د خلیفه کور محاصره شو د محمدبن مغیره بن شعبه له خوا ورته درې شرطونه وړاندې شول، چې یو له دوی ځخه ومانه اول دا چې که چېرته په حقه یې نو امر وکړه چې که په مقابل کې جنګ یې پیل شي خلیفه وویل: چې زه نه غواړم چې د خلکو وینې توی کړم چې هغوی د الله جل جلاله کلیمه ویلي وي.

علي ﷺ بیا تر ممکنه حده حمایت او دفاع وکړه خو کومه نیتجه یې ورنکړه په دغه وخت کې د خلکو له زړونو څخه د تقوی روح ولاړ او خلک د فساد خواته ورنږدې شول، دا د تعجب خبره نه ده کله چې سیاسي، دیني، اجتماعي احزاب چې سري وي او علني د کثرت مرحلې ته ورسیږي نو بیا داسې حالاتو کنترولول یو مشکل کار دی او په دې کې شک نشته چې د فساد باعث به نشي کله چې انقلاب کوونکو د عثمان ﷺ زیاته نرمي او حلم ولیده لا با جراءت او زړه ور شول ترڅو چې د داسې یو جرم مرتکب او داسې یو جلیل القدر او کریم السجا یا خلیفه چې همیشه د ازادۍ او امنیت په هکله حریص وو.

د انقلاب کوونکو د ظالمانه عمل په واسطه چې د کور د دروازې له مخې حمله راوړه دلته د علي ﷺ او د نورو صحابه و د مقاومت سره مخامخ شول.

خو یو تعداد د کور د شا له خوا راواوختل په داسې حال کې چې عثمان ﷺ په خپل کور کې په ډېر وقار او شان او شوکت ناست و او د قران کریم تلاوت یې کاوه کله یې چې عثمان ﷺ یې د مبارکې ږیرې څخه ونیو عثمان ﷺ ورته وفرمایل: که چېرته پلار دې ژوندی ای او ته داسې عمل اجراء کړی وای نو له تاسره به یې څه کړي وه؟

محمد بن ابوبکر ﷺ شرمینده او خلیفه یې خوش کړ او په یوه ګوښه ځای کې ودرېد.

پو یو روایت کې وایې چې دوه نور کسان راغلل او خلیفه یې په توره وواهه او شهید یې کړ، د بې بې (نائلې) ﷺ څخه روایت دی وایې چې ما

۲: د خپل کور دېوال سوری کړه او د اس په واسطه مکې ته پناه یوسه۳: په بل طرف: د شام ولاړ شه چې هلته معاویه حاکم دی مګر عثمان ﷺ د الله په قضا او قدرت ټینګ ایمان درلوده او خپل الله جل جلاله ته تسلیم وه.

ونه پېژندل.

په يو بل روايت کې چې د ابوبکر له ابن عون له الحسن څخه روايت شوی دی وايي چې عثمان رضی‌الله‌عنه د ابو عمرو بن بديل الخزاعي او بل کنانه بن بشر په واسطه د دوه اتيا ۸۲ کلونو په عمر شهيد شو، اناالله وانا اليه راجعون کله چې عثمان رضی‌الله‌عنه د حمله کوونکو لخوا په شهادت ورسيد.

ميرمن يې (بې بې نائلي) دفاع کوله د دفاع په حالت کې د لاسونو ګوتې هم قطعه شوي او د عثمان رضی‌الله‌عنه د زخمونو وينې جاري شوي او د وينو قطري په دې ايت: ﴿فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾ پرېوتې چې تر اوسه دا قران مجيد په مدينه منوره کې محفوظ ساتل شوی دی.

## درېيم خليفه د شهادت اسباب او عوامل

۱. د عبدالله بن سباء يهودي د اسلام له پرمختګ سره حسد او کينه.

۲. د مروان پلار (حکم) راتګ او د خلافت د دربار منشي کېدل.

۳. د عثمان رضی‌الله‌عنه زياته نرمي او حلم.

۴. د نورو اقوامو پرځای د اموي کورنۍ زيات اقتدار.

۵. د هغه صحابه وو کموالی چې د پيغمبر ﷺ د ديدار او تعليم مستفيد شوي وو.

۶. د دنيوي مال او متاع سره د خلکو مينه او رغبت پيدا کېدل.

څرنګه چې نوی نسل هم په اسلامي فضليتونو نه و ښايسته شوي چې د اسلامي امت له حقوقو څخه دفاع او پشتباني وکړي.

پورتني ټول داسې عوامل و چې د اسلام د دښمنانو د تحريک لپاره ښه زمينه مساعده شوه او د مسلمانانو د اتحاد چوکاټ يې دړې وړې کړ.

## د عثمان رضي الله عنه د خلافت په هکله د مؤرخينو نظر

د عثمان رضي الله عنه د خلافت په باره کې مؤرخينو او محققينو نظريات د مذاهبو د عقايدو په ارتباط مختلفې نظري لري، ځينې د مذهبي تعصب په خاطر خليفه د زياتو اتهاماتو او انتقاداتو سره مخامخ کوي او وايي چې خليفه دخلافت په امورو او کارونو حاکميت نه درلوده او ځينې د خليفه د ضعف او سستۍ په هکله دلايل وايي خو اصلي واقعي داسې نه دي.

خليفه په خپله خلافت کامل حاکميت او د خلافت په چارو کې د پوره مهارت خاوند و، د زيات تحمل، نرمۍ او هم د پوره تدبير څښتن و، د محمد صلی الله علیه وسلم د نږدې او مقربو صحابه و څخه و.

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د زياتې تقوی او پرهېزګارۍ په وجه خليفه خپل مشاور باله.

درېيم خليفه هېڅ وخت د مسلمينو په خونريزۍ نه راضي کېده، همېشه يې د مسلمانانو د هوسايي، د مسلمانانو د پرمختګ او د اسلام د تطبيق ضامن و.

د دې د خلافت په دوره کې د روميانو ښارونه کاملاً فتحه او د روميانو او فارسيانو قدرت او طاقت يې محوه او د مسلمانانو په تصرف کې په کامل ډول راغلل، د درېيم خليفه په دور کې اسيايي او افريقايي هېوادونه او داسې نور زيات مناطق په کامل ډول فتحه شو او د اسلام د دين پېروان شول، کله چې يو شخص ضعيف او سست وي هېڅ وخت نشي توانيدی چې دومره مناطق فتحه کړي ا وهلته عدل او عدالت برقرار کړي، خليفه د پوره ثبات او استقامت خاوند و، تل يې د دښمن په مقابل کې د ثبات او استقامت پاليسي درلوده او له مسلمانانو سره يې د زياتې نرمۍ او بخشش سياست درلوده دا چې کوم واقعات د خليفه په دور کې راغلي دي دا د خليفه په ضعف او بې تدبيرۍ دلالت نه کوي.

البته داسې واقعات همېشه په انساني جامعه کې منځ ته راځي خليفه د الله جل جلاله د قراني قانون پابند و او د خپل ژوند دستور العمل يې ګرځولی و.

کوم عمل چې د درېيم خليفه د خلافت دوره د مروان بن حکم د غلط تدبير او سلطنت ته د رسيدو په خاطر يې د خلافت دوره داغداره کړه.

همدارنګه د مختلفو ملتونو، ژبو، عاداتو او عقايدو اسلامي جامعه د يو لړ مشکلاتو سره مخامخ کړه، دا ثابته خبره ده چې د بشريت تعداد متغير کېږي، په هماغه اندازه انسانيت زړونه هم تغير پيدا کړي او د دنيامينه زياتېږي ا و هر څوک نفسي خواهشاتو ته د رسيدو په خاطر سعي او کوښښ کوي ترڅو چې يوه جامعه د فساد او هلاکېدو درياب ته ورغوټه کړي، کله چې د هغه صحابه و تعداد چې صادق، باتدبيره، متدين او د انساني کرامت څښتنان و، له مادي نړۍ څخه يې سترګې پټې کړې او کوم کم شمېر چې پاتې وو هغوی هم د زيات بوډاتوب په نسبت د دنياوي امورو څخه ځانونه کناره کړي وو او د وخت خود غرضو خلکو ته ميدان خالي پاتې شو.

هغه و چې منافقين او مقسدينو له وخت څخه استفاده وکړه او اسلامي جامعه يې د نفاق او شقاق لور ته سوق کړه، ترڅو چې يو تعداد اختلافات او ډلې رامنځ ته شوې، خليفه د دوی د اصلاح په هکله زيات سعې او کوښښونه وکړل مګر موفق نه شو، ترڅو چې خليفه د دوی د بدبختيو د سرقرباني شو.

د درېيم خليفه د خلافت په وخت کې مسلمانان د ارام او هوسا ژوند خاوندان وو، د درېيم خليفه هم عصري اشخاص په دې خبره اجماع او اتفاق کړی دی چې عثمان رضي الله عنه رسول اکرم ﷺ له اصحابو څخه يو صالح، پرهېزګار، نجيب، کريم او عالم صحابي و، د خلافت لايق او د خلافت د مسؤليت له تحمل څخه عاجز نه وو رسول اکرم ﷺ د خپلو اصحابو د

فضليت په هکله فرمايلي دي: «اَصْحَابِي كَالنُّجُومِ بِاَيِّهِمُ اقْتَدَيْتُمُ اهْتَدَيْتُم»

ژباړه : زما صحابه په شان د ستورو دي او تاسې چې د هر يوه سره اقتداء وکړئ هدايت به ومومئ او عثمان رضی الله عنه هم يو د ستورو له هدايت څخه دی.

د عثمان رضی الله عنه د فضليت په هکله د رسول ﷺ احاديثو او صحابه و اقوال

دعايشه رضي الله تعالى عنها څخه روايت دی: ( قالت قال رسول صلى الله عليه وسلم لعثمان رضی الله عنه «آلَا اَسْتَحِي مِنْ رَجُلٍ يَسْتَحِي مِنْهُ الْمَلَائِكَةُ»

١. ژباړه: فرمايلي دي رسول الله ﷺ چې زه ولې د يو داسې شخص څخه حيا ونه کړم چې له هغه څخه ملائکې حيا کوي. (رواه مسلم)

٢. د طلحه بن عبدالله رضی الله عنه څخه روايت دی: ( قال قال رسول الله ﷺ لکل نبی رفيق و رفيقي فی الجنة عثمان)

ژباړه: رسول الله ﷺ فرمايلي دي هر نبي دوستان لري او زما رفيق په جنت کې عثمان رضی الله عنه دی. (رواه ترمذي)

٣. د عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه څخه روايت دی:جَاءَ عُثْمَانُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَلْفِ دِينَارٍ فِي كُمِّهِ حِينَ جَهَّزَ جَيْشَ الْعُسْرَةِ فَنَثَرَهَا فِي حِجْرِهِ فَرَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَلِّبُهَا فِي حِجْرِهِ وَيَقُولُ: «مَا ضَرَّ عُثْمَانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ الْيَوْمِ مَرَّتَيْنِ»

ژباړه: رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې عثمان رضی الله عنه زر ديناره د لستوڼي لاندې پټ په لاره کې نيولې رايوړه او د محمد ﷺ په لمن کې واچول رسول اکرم ﷺ دينار قبول او ويې فرمايل: چې وروسته له دې ورځې څخه عثمان رضی الله عنه ته هيڅ ضرر به ونه رسيږي دا جمله يې دوه ځلې تکرار کړه.

امام حسن بن علي رضی الله عنه : يوه ورځ حسن د خطبې لپاره منبر ته جګ شو او ويې فرمايل: چې ای خلکو! ما تېره شپه خوب وليد چې په عرش معلی

باندې د لوی توانا ذاتﷻ تابناکه رشونايي وځليده، رسول الله ﷺ تشريف راوړو او د عرش په خوا کې ودريد بيا ابوبکر صديقؓ تشريف راوړو او د محمد ﷺ په اوږو يې لاس کېښود، وروسته عمرؓ تشريف راوړو او خپل لاس يې د ابوبکر صديقؓ په اوږو کېښود، وروسته عثمانؓ خپل مبارک سره په لاس کې نيولی و او تشريف يې راوړ او عرض يې وکړ چې ای پروردګاره له خپلوبنده ګانو څخه زما په هکله سوال وکړه چې زه په څه جرم قتل کړی يم، د دې بيان په کولو سره دوه وياله وينې جارې شوې، يو نفر عليؓ ته وويل: چې امام داسې وايي، علي وويل: هغه څه چې امام حسن ليدلي دي هغه ووايي: سعيد بن زيد وويل: ای خلکو! تاسې چې کوم ظلم په عثمانؓ کړی دی د اُحد غر حق لري، چې له خپل ځای څخه بې ځايه شي او حرکت وکړي.

خلکو د حذيفهؓ څخه د مصر د ياغيانو په هکله پوښتنه وکړه حذيفهؓ وفرمايل: ياغيان غواړي چې عثمانؓ قتل کړي مګر عثمانؓ به جنت ته ولاړ شي او قاتلين به يې جهنم ته ولاړ شي زيد بن ثابتؓ د عثمانؓ له شهادت څخه وروسته زيات وژړل.

ابوهريرةؓ د عثمانؓ په شهادت ډېر زيات غمګين و او ويې ويل: خلک يوائې د عثمانؓ په شهادت خپه دي مګر زما لپاره خپګان دوه علته دي، يو دا چې عثمانؓ شهيد شو دويم دا چې ماته محمد ﷺ دوه خريطې خرما راکړې وه او بيا يې د برکت دعا راته وکړه ما د خرما خريطه د ملا پورې تړلې وه، نه پوهېږم چې څومره خرما ما مصرف کړي وه، خو کله چې عثمانؓ شهيد شو، د خرما خريطه هم غائبه شوه معلومېږي چې د عثمانؓ له شهادت سره نبوي برکات هم د ځمکې له سطحې څخه پورته نقل شول.

## پنځم فصل

## څلورم خليفه علي بن ابي طالب رضي الله عنه

## ۳۵ کال- ۴۰ کال پورې

علي رضي الله عنه د ابي طالب دزامنو څخه دی او د بني هاشم په خاندان کې بهترینو اشخاصو څخه شمېرل کېږي، علي لومړنی شخص دی چې د مکې په ماشومانو کې ترټولو څخه لومړی په اسلام مشرف شوی دی د علي رضي الله عنه ټولو حرکاتو او سکناتو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه پېروي کوله، په هغه شپه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم له مکې څخه مدینې ته هجرت کاوه، علي رضي الله عنه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په بستره کې ویده شو او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د خلاصون په غرض یې خپل ځان خطرناکه مرحلې ته وسپاره علي رضي الله عنه خپل ټول ژوند په جهاد اوله کفارو سره په مقابله کې تېر کړی دی، د قوي زړه خاوند، دلاور او د قوي ارادې څښتن وو.

د نبي کریم صلی الله علیه وسلم لور بي بي فاطمې سره یې نکاح کړې وه او له هغې څخه یې دوه تکړه او برجسته زامن یعنې حسن او حسین د جنت سرداران تولد شو پیغمبر صلی الله علیه وسلم د علي رضي الله عنه د مقام په هکله فرمایلي دي د علي رضي الله عنه زما په نزد لکه هارون او د موسی لپاره منزلت لري.

**د علي رضي الله عنه د تولد محل او نسب:**

نوم یې علي ابي طالب بن عبدالمطلب او بل روایت کې حیدر۱ هم ورته ووایي: کنیه نوم یې ابو الحسن، ابو الحسین، ابو تراب او په اسدالله هم ملقب وو.

مور یې فاطمه بنت اسد بن هاشم بن عبدالمناف لور وه، نو ویلی شو چې علي د مور او پلار لخوا قریشي وو.

---

۱- د ابو طالب خپل نوم حیدر دی.

د مکې له هجرت څخه ۲۱ کاله مخکې په مکه مکرمه کې تولد شوی دی او په بل روایت کې له بعثت څخه ۱۰ کاله مخکې تولد شوی دی ابو طالب هغه څوک دی چې عبدالمطلب له مړینې څخه وروسته خپل وراره علي رضي الله عنه په خپله غېږه کې ونیوه او د ده په روزنه او پالنه کې تل زیارو ایست او د خپل زوی څخه یې تیټ نه باله ابوطالب د علي رضي الله عنه څخه سربېره نور زامن هم درلودل چې لکه طالب، عقیل او جعفر نومېده او علي له ټولو څخه کشر و کله چې محمد ﷺ ځوان شو، ابوطالب به په هر سفر کې له ځان سره بیوه او بیا چې محمد ﷺ په رسالت مبعوث شو ابو طالب د مړینې تر وخته بې له دې چې د قریشو له تهدید او پتکو څخه ووېرېږي د ده ساتنه کوله علي رضي الله عنه صداقت، د الله جل جلاله عبادت کوونکی، امانت علم، زهد او تقوا ټول د محمد ﷺ زده کړي دي.

## د علي رضي الله عنه ایمان راوړل.

علي رضي الله عنه د کوچنیتوب په وخت کې یوه ورځ محمد ﷺ ولیده چې د بې بې خدیجې رضي الله عنها سره یې یوځای لمونځ کاوه، د لمانځه ارکان رکوع او سجده یې کوله او هغه ځینې قراني ایتونه چې تر دې وخت پورې نازل شوي وو پکې لوستل، علي رضي الله عنه وروسته ځیر شو چې دوی څه کوي، کله چې له لمانځه څخه فارغ شول، علي رضي الله عنه پوښتنه وکړه چې تاسو څه کول او چاته مو سجده کوله؟ محمد ﷺ ځواب ورکړ زموږ سجده د یوه الله جل جلاله لپاره ده، چې زه یې پیغمبر رالېږلی یم او امر یې راته کړی دی، چې خلک دحقې لارې ته راوبولم، دلته یې علي هم د یوه الله جل جلاله عبادت ته راوباله او څو قراني ایتونه یې ورته ولوستل د الله جل جلاله قول پرې ډېره اغېزه وکړه، وروسته له لږ فکر کولو یې محمد ﷺ ته وویل: ډېره ښه ده ماته لږ مهلت راکړه، ترڅو په دې باره کې له خپل پلار سره مشوره وکړم، خو په هغه شپه علي بیده نه شو، سهار د محمد ﷺ حضور ته راغی او اسلام

يې راوړ او ويې ويل: زه الله جل جلاله پرته د ابوطالب له سلا پيدا کړی يم اوس نو د الله جل جلاله په منلو او عبادت کولو کې د دې سلا څه ضرورت نه لرم، په دې وخت کې د علي رضي الله عنه عمر تر يوولسو کالو زيات نه و.
کله چې مسلمانانو يثرب ته هجرت کاوه او قريشو د محمد صلی الله علیه وسلم وژلو ته ملا وې تړلې وې، علي رضي الله عنه خپله ډېره غوره سرښندنه دا ډول وښوده په هغې شپه چې دښمنانو غوښتل چې خپل مقصد د محمد صلی الله علیه وسلم وژل و سرته ورسوي، علي رضي الله عنه له خپل سرڅخه تېر او د محمد صلی الله علیه وسلم په بستره کې پريوت او دښمن يې د هغه له تعقيب څخه منعه کړ او خپله سرښندنه يې په ډېره زړه ورتيا وښودله او دښمن بريالی نه شو، په همدې ډول علي رضي الله عنه په غزاګانو کې له پيغمبر صلی الله علیه وسلم سره خپله ميړانه ښکاره کړه او غنيمت برخه يې اخيستې ده په تېره بيا د اُحد په جګړه کې ده او حمزه رضي الله عنه د مشرکينو لښکر ډېر زيات ولړزاوه او بيا د خيبر په جګړه کې خپله ميړانه او زړه ورتيا په دې ډول ښودلې ده، چې ساری نه لري د محمد صلی الله علیه وسلم د مبارک لاس څخه يې بېرغ واخيسته او د ناعم په کلکه کلا يې يرغل وکړ او هغه يې ونيوله، علي رضي الله عنه په زهد او تقوی مشهور و، په علم او فضل کې د لوړې مرتبې خاوند و، لکه چې پخپله پيغمبر صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي: زه د علم مدينه (ښار) يم او علي رضي الله عنه يې دروازه ده.

**د علي خصوصي اوصاف:**

علي رضي الله عنه د ماشومتوب په مرحله کې سليم البنيه او سريع النموماشوم و په هر اندازه چې عمر تېريده په هماغه اندازه يې د جسم اعضاء قوي کېدل حتی له ځوانۍ څخه ترپيرې (بوډاتوب) پورې ثابت او د قوت خاوند و، قوت فايقه تر شپيتو کلونو پورې د د په جسم کې محفوظ وه، د علي رضي الله عنه په تعريف کې ويل شوي دي، د ميانه قد لرونکی او کوتاهۍ ته مايل و غنم رنګه او مقبول شخص و، همېشه د تبسم په حالت کې و، د

سر د مخکې برخې وېښتان یې رژېدلي وو، د جنګ په وخت کې به یې په لړزه راوستل د علي رضي الله عنه پورتني اوصاف جسماني و، خواخلاقي، شخصي او نفسي اوصاف یې په لاندې ډول دي.

علي رضي الله عنه د مکارم اخلاق او اسلامي ادابو یوه بهترینه منبع او سرچینه وه، سربېره پر دې نیکي، شهامت او مروت یې زیات دوست درلوده، دغو اخلاقو علي رضي الله عنه ته زیب ورېښلی و، علي رضي الله عنه د دیني علومو له حیثه عالم، وسیع المعرفت، زیرک، فهمیده او پرهېزګار شخص و، هم فصیح، بلیغ او د تبلیغ په وخت کې جذباتي او ښه اواز خاوند و.

د نهج البلاغة کتاب د دې په فصاحت او بلاغت باندې یو لوی دلیل او مدعی دی، علي رضي الله عنه دمحمد صلی الله علیه وسلم سره په ټولو غزواتو کې برخه اخیستې او په هرجنګ کې شجاعت او سربښندنه ښودلې وه، محمد صلی الله علیه وسلم د علي رضي الله عنه په باره کې فرمایلي دي: «مَنْ کُنْتُ مَولَاهُ فَعَلِيٌّ مَولَاهُ»

ژباړه: زه چې د هر چا دوست یم علي رضي الله عنه هم د هغه دوست دی.

او همدارنګه فرمایلي دي: اللّهُمَّ وَالِ مَنْ وَالَاهُ، اللّهُمَّ عَادِ مَنْ عَادَاهُ»

ژباړه: ای الله جل جلاله ! هرڅوک چې علي رضي الله عنه دوست لري ته هم هغه دوست لره او هرڅوک چې د علي رضي الله عنه سره دښمني کوي ته هم له هغه سره دښمني وکړه.

علي رضي الله عنه د ژوند د اقتصاد په هکله د عمر بن خطاب رضي الله عنه سره مشابه دی، علي رضي الله عنه همېشه په خرما او اوبو ژوند تېراوه او د فاطمه رضي الله عنها لپاره یې (د کومک لپاره) کوم خادم هم نه درلوده، یوه ورځ د معاویه بن ابو سفیان رضي الله عنه د علي رضي الله عنه له وفات څخه وروسته له ضرار څخه د اصحابو له جملې څخه و، د علي رضي الله عنه د اخلاقو پوښتنه وکړه او ورته یې وویل: چې ای ضرار! د علي رضي الله عنه صفات بیان کړه، ضرار وویل: چې ای امیر

المومنين ! ما معاف کړه. امير معاويه وويل: چې حتمي تعريف يې و کړه، ضرار وويل: څرنګه چې تاسې پر ما باندې په جبري ډول بيانوئ، نو د علي رضي الله عنه صفات په لاندې ډول دي.

علي رضي الله عنه د وړاندېش او د قوت خاوند و، خبرې په استقامت او فصاحت سره کولي، حکم يې په عدالت سره کاوه، علم د هغه په وجود کې د لړې ځلېده، د دنيوي لذت څخه بېزاره و، ساده خوراک يې خوښاوه، د علماوو او اهل دين خلکو يې تعظيم کاوه، د غريبو او بېچاره خلکو سره يې مينه او محبت درلوده او همېشه يې په بوريا او پوزي استراحت کاوه، کله چې به تاريکي او شپه شوه خپله ږيره به يې د خپګان په حالت کې قبضه کړه او ويل به يې:

اې دنيا! پرته له ما څخه بل چاته فريب ورکړه، زما په طرف تعرض مه کوه، زما سره شوق او علاقه مه ساته زه له تاڅخه بېزاره يم، تاته طلاق درکوم، ماته رجوع مه کوه، ستا عمر ډېر کم مګر خطر ډېر زيات دی.

په دې حميده او جميله صفاتو په اورېدو سره امير معاويه په ژړا او فرياد شروع وکړه او ويې ويل:

اې الله جل جلاله ! په ابوالحسن رحم وکړه، قسم په الله جل جلاله په همدې ډول خوي او اخلاق يې درلوده بيا يې وويل:

چې اې ضراره! ستا غم د علي رضي الله عنه په باره کې په کومه اندازه دی، ضرار وويل: چې زما غم په هغه اندازه دی لکه يو ماشوم بچی چې د پلار په غېږ کې سلګۍ وهي.

## د علي رضي الله عنه ازدواج او اولاده

په کوم وخت کې چې علي رضي الله عنه ۲۳ کلنۍ ته ورسيد نو د ازدواج په فکر کې شو، څرنګه چې په دغه وخت کې اقتصادي حالت خراب او مال او جايداد يې هم نه درلوده او د رسول الله صلی الله عليه وسلم لور فاطمة

الزهرا خواته يې تمايل درلوده، کله چې نبي کريمﷺ د دغه رغبت حس کړ، نو په فوري ډول يې فاطمة الزهرا عليؓ ته په نکاح ورکړه، سره دې چې نورو ډېرو اصحابو هم د رسول الله ﷺ طرف د وصيت کارۍ تمنا درلوده. دا د عليؓ لومړنۍ ميرمن وه، تر څو پور چې دا د حيات خاونده وه، عليؓ له بلې ښځې سره عقد نه دی کړی او له د څخه يې حسن، حسين، محسن، زينب او ام کلثوم متولد شول.

له فاطمة الزهرا د وفات څخه وروسته حضرت عليؓ له نورو ييبيانو سره ازدواج کړی دی.

۱. ام البنين بنت خزام چې د بني عامر بن کلاب له قبيلې څخه وه او له دې څخه عباس، جعفر، عبدالله او عثمان تولد شوي دي.

۲. ليلی بنت مسعود تميمي چې له دې څخه عبدالله، اصغر اوابوبکر تولد شوي دي.

۳. اسماء بنت عميس حشعمي چې له دې څخه يحيی او محمد زېږېدلي دي.

۴. صهباء بنت ربيعه چې د بني حشم بن بکر او ابن ام ولد څخه و او له دې څخه عمر او رقيه زېږېدلي دي.

۵. امامة بنت ابو العاص بن ربيع چې د رسول اکرمﷺ لمسۍ (د زينب لور وه) او بيا له ده څخه محمد اوسط وزېږېده.

٦. ام سعيد بنت امرالقيس کلبي چې له دې څخه جاريه تولد شوه.

۷. خوله بنت جعفر حنفيه چې محمد يه ابن حنيفيه سره مشهور دی تولد شوې دی.

۸. حيانت بنت عوده بن مسعود چې له دې څخه ام الحسين او رمله اکبریٰ تولد شوی دي.

عليؓ د فاطمه الزهرا له ازدواج مخکې غوښتل چې د ابوجهل له لور

سره نکاح وکړي، مګر کله چې محمد ﷺ ته له دغې موضوع څخه اطلاع ورسیده د دغه کار مانع شو او نه يې غوښتل چې دغه ازدواج صورت ونیسي.

### له علي رضي الله عنه د خلافت لپاره د مسلمانانو بیعت

کله چې انقلاب کوونکو عثمان رضي الله عنه په شهادت ورساوه، د علي حضور ته راغلل چې د خلافت په منصب يې تعین کړي، کله چې علي رضي الله عنه دا حال ولید د انقلاب کوونکو غوښتنه يې رد کړه، د بصرې شورشیان د طلحه بن عبیدالله حضور ته حاضر شول او له هغه څخه يې د خلافت د قبلیدو غوښتنه وکړه.

طلحه رضي الله عنه هم د دوی تقاضا ته منفي ځواب ورکړ، کله چې د شورشیانو تقاضا د دوی له خوا مردوده شوه، نو بیا يې د خلافت د شوری نورو اعضاوو ته رجوع وکړه او د سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه طرف ته متوجه شول چې له ده سره بیعت وکړي مګر سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه هم د دوی نظریه رد کړه، بیا د عبدالله ابن عمر رضي الله عنه حضور ته حاضر شول عبدالله ابن عمر رضي الله عنه هم د دوی نظریه قبوله نه کړه.

بیا مجبور شول چې د علي رضي الله عنه خواته رجوع وکړي، ځکه دوی ویرېده چې د ښارونو حاکمان پرې حمله ونه کړي او له منځه يې یونه سي، وروسته اشتر بن مالک نخعي د علي رضي الله عنه مخې ته راغی او د علي رضي الله عنه په لاس يې بیعت وکړ ترڅو چې علي رضي الله عنه وس درلوده دا خبره يې نه منله په پای کې د مسلمانانو د ګڼې لپاره د دې کار د منلو لپاره حاضر او له هر لورې عام بیعت شروع شو او که چا به بیعت نه و له هغې جملې څخه چې بیعت ونه کړ سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه، عبدالله بن عمر رضي الله عنه او معاویه رضي الله عنه و، طلحه بن عبیدالله رضي الله عنه او زبیر رضي الله عنه په لومړۍ مرحله کې د بیعت څخه انکار وکړ مګر وروسته يې له علي رضي الله عنه سره بیعت وکړ. له انصارو څخه

حسان بن ثابت، مسلمه بن خالد، ابو سعيد خدري، محمد بن مسلمه د علي رضي الله عنه سره بيعت ونه کړ، يو شمېر خلکو په دې غرض بيعت ونه کړ، ځکه وېرېدل چې د عمر رضي الله عنه په شان به د ماديا تو او عياشۍ حلقه راتنګه کړي، همدارنګه د بني اميه خاندان هم د بني هاشمو د دې منصب مخالف وو، خو په اصل کې حقيقت دارنګه و، چې د علي رضي الله عنه څخه به غير په دې مرحله کې بل څوک د خلافت حقدار نه و، کله چې طلحه رضي الله عنه او زبير رضي الله عنه د علي رضي الله عنه سره بيعت وکړ نو په فوري ډول د حج د مناسکو د اداء کولو په منظور د مکې په طرف ولاړل او هلته د بې بې عايشه رضي الله عنها سره يو ځای شول او د شام خلکو ته هم د علي رضي الله عنه سره بيعت ونه کړ دوی ګمان کاوه چې مهاجرينو او انصارو په جبري ډول د علي رضي الله عنه سره بيعت کړی دی، په کوم وخت چې علي رضي الله عنه د خلافت په مقام تعين شو نو يو تعداد د خلکو د شام په لور چې هلته معاويه رضي الله عنه له پخوا څخه (ياني د عمر رضي الله عنه او عثمان رضي الله عنه د خلافت په وخت کې د شام داسې مقتدر والي و، چې ډېر لښکري يې ځانته راټول کړي او له ډېرو کلونو راهيسې دا ډول روزلې وو، چې څه به يې ورته ويل دوی به منل) د شام والي و. فرار وکړ او هلته يې د عثمان رضي الله عنه شهادت پلمه کړ او د درېيم خليفه په وينو سره کالي او د هغه د ميرمنې (بې بې نائلې) پرې کړې ګوتې ورسره وي، وروښودې او د مخالفت بېرغونه يې پورته کړه، چې نتيجه د عالم اسلام په نقص تمامه شوه.

د علي رضي الله عنه ټوله دوره د مخالفت په کورنيو جګړو کې تېره شوه او مخالفينو پرې نښوده چې د اسلام د پرمختګ لپاره خپل استعداد په کار واچوي، نو هماغه و چې په مسلسل ډول درې واقعې رامنځ ته شوې.

۱- د جمل واقعه.

۲- د صفين واقعه.

۳- د نهروان مقابله له خوارج سره کله چې علي رضي الله عنه د ټولو مسلمانانو لخوا په ډله ایز ډول د خلافت د مقام لپاره وټاکل شو، نو په فوري ډول یې مسلمانانو ته د مدینې په مسجد کې داسې خطابه قرائت کړه.

۱- لومړی خطبه: وروسته د حمد او ثنا څخه یې وویل: بېشکه الله جل جلاله د هدایت کتاب (قران کریم) نازل کړی دی او په دې کتاب کې د خیر او شر ټول مسایل په مفصل ډول بیان کړي دي، پس تاسې خیر قبول کړئ او شر ترک کړئ او فرائض اداء کړئ الله جل جلاله به تاسې اهل د جنت وګرځوي، بېشکه الله جل جلاله محرمات په واضح ډول بیان کړي د مسلمانانو حرمت په ټولو شیانو اوچت شمېرل شوی دی او د الله جل جلاله په توحید او د مسلمانانو په یووالي یې تاکید کړی دی.

مسلمانان هغه څوک دي چې د هغه له ژبې او لاس څخه بل مسلمان په امن کې پاتې شي او د ده د لاس څوک ضرر او تکلیف ونه ګوري مګر په حق سره.

مسلمانانو ته ضرر رسول په هېڅ وجه حلال نه دي مګر په هغه چې واجب دي.

ای خلکو! له الله جل جلاله څخه ووېرېږئ د الله جل جلاله په ځمکه تاسې د حیواناتو او نورو ژوندي موجوداتو په هکله په هغه څه چې الله جل جلاله د اطاعت امر کوي تاسې مسؤل یاستئ او نافرماني یې مه کوئ.

## د علي رضي الله عنه د حکومت طرز او سیاست

د علي رضي الله عنه طبعي او ذاتي سیاست د حکامو په هکله داسې و چې حکام باید خپله وظیفه د اسلام د اصولو مطابق انجام کړي او په خپلو کارونو باندې چې واقعي ډول عمل وکړي په دې باره کې د چا له ملامتیا څخه ونه وېریده، د لمانځه له اداء کولو څخه وروسته یې دوه قرارداده په لاندې ډول صادر کړل.

١- هغه حاکمان چې د عثمان رضي الله عنه د خلافت په دوره کې مقرر شوي دي، باید له خپل مقام څخه معزول او منفک شي، ځکه چې د دوی د ظلم او بد عمل څخه ټول مسلمانان شکایت لري.
٢- باید د دوی رابطه له بیت المال څخه قطعه شي او همدارنګه هغه ځمکې او د دولت ملکیت چې د خلافت په دوره کې خپلو اقاربو ته عطاء کړي دي، باید بېرته د حکومت او بیت المال خواته مسترد شي، د علي رضي الله عنه اقاربو او مشاورینو نه غوښتل چې په پورتینو فیصلو باندې په فوري ډول اقدام وشي، د هغوی نظریه دا وه چې یو ځل دې د ټولو ښارونو څخه بیعت واخیستل شي او د خلافت مقام په ټولو امورو او کارونو باندې کامل حاکمیت حاصل کړي بیا دې پرې عمل وشي، علي رضي الله عنه د خپلو مشاورینو دا نظریه رد کړه او اسرار یې کاوه، چې څرنګه هغه والیان او حاکمان چې په خپل حال پاتې شي په داسې حال کې چې د دوی له لاسه ټول خلک شکایت کوي او زه هم په دوی باندې شک لرم.
څرنګه چې ما د دوی د معزولیت فیصله مخکې عثمان رضي الله عنه ته پېشنهاد کړې وه اوس یې څرنګه زه په خپل حال باقي پرېږدم چې له بیت المال څخه ناحقه استفاده وکړي، په همدې اساس یې هغه والیان او حاکمان چې د ده په نظر د اعتماد وړ او هم خلکو ته د منلو وړ وو د سابقه والیانو او حاکمانو په عوض معرفي کړل، ترڅو چې د عثمان رضي الله عنه د والیانو په ځای مستقر شي.
علي رضي الله عنه د بصرې په طرف عثمان بن حنیف او ورور یې سهیل بن حنیف د شام په لور او عبیدالله ابن عباس د یمن خواته او قیس بن عباده د مصر په طرف عماره بن شهاب د کوفې په طرف استخدام کړل، مګر د کوفې خلکو نوی حاکم قبول نکړو ځکه دوی نه غوښتل چې سابقه حاکم ابو

موسی اشعري رضي الله عنه له خپل مقام څخه برطرف شي او قیس بن ابي عباده پرته د کومي واهمې څخه مصر ته داخل شو او د علي رضي الله عنه لپاره یې د مصر له خلکو څخه بیعت واخیست او همدارنګه عثمان بن حنیف بصري ته ورسید او هېڅوک یې مخالف نشو او سهیل بن حنیف د شام په طرف ولاړ د تبوک محل ته لانه وو رسیدلي چې مقابلې ته یې د امیر معاویه اس سواران راورسېدل، سهیل بېرته د مدینې په لور راغی، دا یو قسم اخطار و د معاویه لخوا د علي په مقابل کې یعنې معاویه رضي الله عنه نه غوښتل چې له علي رضي الله عنه سره بیعت وکړي، بلکې د جنګ او منازعې لپاره یې تیاری ونیو.

په همدې ترتیب ترمنځ یې جنګ عوامل رامنځ ته شول او په نتیجه کې خلک په دوو دستو وویشل شول.

کله چې معاویه رضي الله عنه د عمر فاروق رضي الله عنه او د عثمان رضي الله عنه د خلافت په دور کې د شام والي و، نو هلته یې یو فوځ داسې روزلی و، چې هرڅه به یې ورته ویل نو د امیر معاویه رضي الله عنه په دې خاطر چې د سلطنت مقام ته ورسېږي، نو کله به یې د عثمان رضي الله عنه شهادت پلمه کړ او کله به یې پخپله علي رضي الله عنه د درېیم خلیفه قاتل باله او کله به یې ویل چې د عثمان رضي الله عنه قاتلانو ته یې پناه ورکړې ده او نه یې قصاصوي.

نو د عثمان رضي الله عنه په وینو لړلي کالي او د بې بې نائلي پرېکړې شوې ګوتې به یې خلکو ته ورښودې چې ترڅو خلکو جذباتې حس ښه راوپارېږي، علي رضي الله عنه په دې منظور چې د یو طرفه د قاتلانو تعداد زیات و او له بله پلوه شرایط مساعد نه و نشو کولای چې په دې حساسه مرحله کې دومره زیات کسان قصاص کړي، نو په همدې نسبت یو لړ شورشونه او بغاوتونه رامنځ ته شول چې ډېر مسلمانان پکې تباه او نتیجه یې د مسلمانانو د تجزیه کېدو او زیاتو فرقو ایجاد وګرځېد.

## د علي رضي الله عنه د خلافت حق او مخالفين

د علي رضي الله عنه په همدې وخت او زمان کې ترټولو ځخه زيات د خلافت حقدار و او هېڅوک له دې څخه انکار نشي کولای، ځکه چې دا د خپل وخت باتدبيره او د محمد ﷺ کامل او همکار و او همدارنګه يې اخلاقي او ديني امتيازات درلودل او د رسول اکرم ﷺ د اعتماد وړ شخصيت او د محمد ﷺ لور (بي بي فاطمه) يې هم په نکاح اخيستې وه او هم د رسول الله ﷺ له نږدې اقاربو او بلکې د ميراث څښتن هم همدا و، په دې دليل چې الله تعالی جل جلاله فرمايي:

وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللَّهِ

د اولی الارحام څخه مراد د رسول اکرم ﷺ اقارب دي.

ځينې اصحابو چې د علي رضي الله عنه سره يې مخالفت کاوه چې عباده، طلحه يا زبير او عقيل د علي رضي الله عنه ورور چې د معاويه رضي الله عنه سره په صف کې ودرېدل يا عبدالله ابن عباس (د علي رضي الله عنه د کاکا زوی) او داسې نور لکه عمرو ابن العاص او مغيره ابن شعبه او ام المؤمنين شايد د بي بي عايشې رضي الله عنها د دوی مخالفت د شرعي معاملو د محاسبې له مخې وي، يا د بې ځايه مطالبو په وجه يې علي رضي الله عنه محروم ګڼه له بل طرفه په دې وخت کې معاويه رضي الله عنه د مال او دولت په وجه هم يو تعداد خلک ځانته جذب کړي وه چې د هغې له جملې څخه د عقيل واقعه چې د علي ورور دی ولې د علي رضي الله عنه سره مخالف شو په لاندې ډول ده.

يوه ورځ عقيل د علي رضي الله عنه څخه وغوښتل چې ماته يو څه قدر مال له بيت المال څخه راکړه، علي رضي الله عنه د عقيل دا غوښتنه رد کړه او عقيل په غوسه شو او په قهر سره يې وويل: چې زه به هغه چاته ورشم چې هغه ماله تا څخه دوست ګڼي يعنې مطلب يې معاويه و.

امير معاويه ته حاضر شو معاويه د عقيل ډېر زيات احترام او عزت وکړ او ييا چې څه عقيل وغوښتل هغه يې ورکړل په دې علت باندې عقيل له معاويه سره پيوست شو وايي چې يوه ورځ معاويه له عقيل څخه پوښتنه وکړه چې زه بهتر يم که ستا ورور علي رضي الله عنه ؟

عقيل وويل: چې ته زما لپاره د دنيوي امورو په هکله بهتر يي او علي رضي الله عنه د ديني احکامو په هکله بهتر دی، همدارنګه هغو کسانو چې د معاويه رضي الله عنه په طرف ځای نيولی وو يا يې له قوم څخه وو او يا يې د عيش او عشرت په هکله چې د درېيم خليفه د خلافت په دوره کې ډېر مال او متاع جمعه کړې وه او يا هغه کسان وو چې د علي رضي الله عنه لخوا معزول شوي وو او يا هغه کسان چې د رسول اکرم ﷺ د حيات په وخت کې د دوی اقارب د غزاګانو په لړ کې وژلي وو، د دوی د حسد او کينې له مخې له علي رضي الله عنه بيعت نه کاوه او په مخالفت لاس پورې کړ او امير معاويه رضي الله عنه يې د خلافت مستحق ګاڼه.

### د علي رضي الله عنه او امير معاويه ترمنځګړيتوب او د ليکونو تبادله

کوم وخت چې علي رضي الله عنه د خلافت په مقام وټاکل شو نو ورځ پر ورځ د علي رضي الله عنه او امير معاويه ترمنځ د نزاع او اختلاف عوامل زياتېدل.

بعضو منځګړو له امير معاويه څخه د صلحي او سازش په ارتباط وغوښتل هغه څه چې ته علي رضي الله عنه څخه غواړې هغه غوښتنه ته د کاغذ پر مخ وليکه او ورو يې لېږه که چېرته علي رضي الله عنه ځواب ورکړ نو مسلمانان به له شر څخه معبون پاتې شي او که چېرته علي رضي الله عنه ځواب ورنه کړي د خلافت حق ستا دی.

معاويه رضي الله عنه علي رضي الله عنه ته يو مفصل مکتوب وليکه په هغه

مکتوب کې يې ذکر کړي و.
بېشکه الله جل جلاله د رسول اکرم ﷺ د اعانت لپاره يو تعداد اشخاص غوره کړي وه، لکه ابوبکر صديق رضي الله عنه، عمر رضي الله عنه او عثمان رضي الله عنه چې ظلماً ووژل شو، پس له حکم څخه تا بغاوت وکړ او عثمان رضي الله عنه په مدينه کې ووژل شو، او هرهغه څه واقعات چې د عثمان رضي الله عنه په مخ کې راتلل تا ليدل او اورېدل او تا د عثمان رضي الله عنه قولاً او عملاً دفاع نه کوله، زه اطلاع لرم چې ته د عثمان رضي الله عنه مرګ ناديده او بې تفاوت بولې او خپل ځان ته نجات ورکوې.
که چېرته تاسې په حقه اوسئ، د عثمان رضي الله عنه قاتلين ماته تسليم کړئ، ترڅو زه هغه قتل کړم او که چېرته تاسې دا عمل انجام نه کړئ نو زما او ستا فيصله به توره کوي.
علي رضي الله عنه د امير معاويه د مکتوب په ځواب کې داسې وليکل:
اى معاويه! تا په خپل ليک کې ذکر کړي دي، چې عثمان بن عفان د فضليت په لحاظ درېيم شخص دى، که چېرته هغه يو نيکو کار شخص وي، د رب العزت په مخ کې به ملاقي شي او الله جل جلاله به د هغه د نيکو اعمالو اجر څو چنده ورکړي او که چېرته يې بد اعمال انجام کړي وي بيا به هم د رب العزت په مقابل کې ملاقي شي او الله جل جلاله ته د ګناهانو بخشش او بخښل کوم درونډ او سنګين کار نه دى او سربېره پر دې تا په خپل مکتوب کې اضافه کړي دي چې ته د خلفاوو مخالف او هغوى سره حسد کوي، معاذ الله، زه نه ظاهر او نه پټ مخالفت کوم.
حال دا چې ستا پلار ابوسفيان د رسول الله ﷺ له وفات څخه وروسته او د ابوبکر صديق رضي الله عنه له بيعت څخه مخکې زما مخې ته راغى او راته يې وويل: اى علي! ته له ټولو خلکو څخه د خلافت په باره کې مستحق تر او برتري لرې. لاس دې راکړه چې زه له تاسره بيعت وکړم، ما د اختلاف د

ویرې انکار وکړ.

ای معاویه! ته زیات پوهېږې یا ستا پلار زیات پوهېده، درېیم دا چې زه د عثمان رضی الله عنه د قتل په هکله د خلکو محرک شمېرلی یم او حال دا چې خلکو کوم پاڅون او انقلاب رامنځته کړی وو هغه د هغوی خپل مسؤلیت وو.

زه په کلي ډول په دغه جریان کې دخیل نه وم او هغه څه چې د عثمان رضی الله عنه په سر راغلي دي هغه ټول تا لیدلې دي او بیا دې په لیک کې ماته را لېږلي دي.

څلورم تا د عثمان رضی الله عنه د قاتلینو د تحویل په هکله یادونه کړې ده، زه هیڅ یو مشخص قاتل (قاتلین) نه پېژنم دغه منځګړیتوب چې نزاع او اختلاف خاموش کړي هیڅ کومه نتیجه ورنه کړه د جنګ او مرګې اسباب زیات شول علي رضی الله عنه تر قدرته پورې د جنګ کولو څخه پرهېز کاوه، همېشه یې صبر او تحمل کاوه او غوښتل یې چې په هر ډول وي معاویه باید قانع شي او کله به د علي رضی الله عنه معاویه ته ویل: چې زما سره متحد شه چې یو ځای د عثمان رضی الله عنه قاتلین له منځه یوسو.

علي رضی الله عنه همېشه له جنګ او نزاع څخه کناره ګیري کوله او کوښښ کاوه چې د حق خواته رجوع وکړي، ولې معاویه انکار وکړ او موضوع یې په تعوق کې واچوله د شام د لویانو د لښکر د قومندانانو سره یې مشوره وکړه، عمروبن العاص اشاره وکړه چې باید مجدداً د عثمان رضی الله عنه د خون پوښتنه له علي رضی الله عنه څخه وشي او عمرو بن العاص په دې موضوع زیات اسرار کاوه، معاویه د عثمان رضی الله عنه په وینو لړلي کالي او د بې بې نائلې پریکړې ګوتې د خلکو د ښه تحریکولو په خاطر په هر ځای کې خلکو ته وربښودې ترڅو خلک د علي رضی الله عنه مقابلې لپاره تیار او اماده شي.

امیر معاویه د شام له خلکو څخه یو لوی لښکر چې په هره ډول تجهیزاتو

مجهز و سره متحد او منظم کړ او د علي لښکر د کوفي، بصري، مدينې او نورو تابعينو او علي رضي‌الله‌عنه له متشعينو څخه تشکيل شو، د خبرو او تفاهم په عوض يوازې جنګ او مقابلې ته ځای پاتې و او بس.

## د جمل د جنګ خبر

هغه اتفاقي جنګ چې د علي رضي‌الله‌عنه او عائشې رضي‌الله‌عنها او نورو ترمنځ په بصره کې پېښ شو هغه جنګ ته جنګ جمل يعنې د اوښې جنګ وايي.

يوه ورځ محمد ﷺ په کور کې د ازواج مطهراتو سره ناست و چې ويې ويل: له تاسې څخه به په يو چا پسې د (حواب)[1] سپي وغاپي هر کله چې عايشه رضي‌الله‌عنها د اصحابو جمل سره روانه شوه او د حواب ډنډ ته ورسېده او سپو ورپسې په غپلو پيل وکړ نو دلته د محمد ﷺ دا پېشګويي ور په ياده[2] شوه.

## د جمل واقعه

دا واقعه د جمادي الاخر په مياشتې د هجرت په ۳۶ کال کې واقع شوې ده، د دې جنګ په هکله زياتو تاريخونو مختلفې نظرې او قسماقسم رنګونه ورکړي دي او ځينو تاريخونو له حد څخه هم تجاوز کړی دی، صحيح واقعه سيف مسؤل صاحب د قرطبه تاريخ په حواله په مفصل ډول بيان کړې ده چې شرحه يې په لاندې ډول ده.

کله چې طلحه او زبير رضي‌الله‌عنه د علي رضي‌الله‌عنه په لاس بيعت وکړ طلحه او زبير رضي‌الله‌عنه د حج د مناسکو د اداء کولو په منظور مکې مکرمې ته تشريف ويوړ او د ام المؤمنين بي بي عايشه هم پخوا له دوی څخه د حج د مناسکو د اداء

---

۱- حواب په عراق کې د يو ډنډ نوم دی، چې دا روايت د دريېم ټوک د سيرة النبي ﷺ څخه چې په ۵۲۳ مخ کې ذکر شوی دی راخيستل شوی دی.

۲ - د مسند ابن حنبل د ٦ جلد ۵۲نه تر۹۷ په حواله رانقل شوی دی.

کولو په غرض مکې معظمې ته تللي وه او تر دغه وخته پورې په مکه کې سکونت کاوه، طلحهرضي‌الله‌عنه او زبير د بي بي عايشې رضي الله عنها حضور ته حاضر شول او د عليرضي‌الله‌عنه سره د بيعت کولو ټول سرګذشت بيان کړ او د عثمانرضي‌الله‌عنه د شهادت په هکله يې هم حال او احوال ورته شرحه کړ او د باغيانو د شورش په هکله او د مدينې منورې د سياسي حالت او د امنيت د خرابېدو په وضعه سعي او کوښښ وکړي چې عليرضي‌الله‌عنه ته مصلحت ورکړي چې د عثمانرضي‌الله‌عنه د قاتلينو د قصاص په هکله سکوت اختيار نه کړي ځکه چې د سکوت حالات وضعه نوره هم خرابوي عائشه رضي‌الله‌عنها د دې مشورې له شرکت څخه ډډه وکړه مګر بيا وروسته يې د طلحهرضي‌الله‌عنه او زبيررضي‌الله‌عنه د قران پاک يو ايت تلاوت کړ چې په هغه کې د مسلمانانو د اصلاح دستور ورکړ شوی وه، بالاخره عائشه رضي‌الله‌عنها په دې خبره يې اتفاق وکړ او دغه مشوره يې قبوله کړه او داسې تجويز ونيول شو، چې مدينه کې بايد د باغيانو قوت کمزوری شي او عليرضي‌الله‌عنه د مفسدانو او د باغيانو له نظري څخه صرف نظر او له تاسې سره اتفاق وکړي ترڅو د عثمانرضي‌الله‌عنه قاتلين قصاص شي او مفسدانو ته بايد جزا ورکړ شي، د دې تجويز له مخې عايشه رضي الله عنها د بصري خواته اعزام کړی شوه، مفسدانو دا واقعه عليرضي‌الله‌عنه ته په معکوس ډول او بيا يې په يو بل عجيب رنګ بيان کړه او زياته يې کړه چې عائشه رضي‌الله‌عنها تصميم لري چې تا له خلافت څخه معزول کړي کومه اراده چې ام المؤمنين د اصلاح په خاطر درلوده مفسدانو غوښتل چې عليرضي‌الله‌عنه له دې تصميم څخه مطلع نه شي.

همدارنګه علي رضي‌الله‌عنه هم بصري خواته تشريف ويوړ عبدالله بن جعفررضي‌الله‌عنه او عبدالله بن عباسرضي‌الله‌عنه د دې فوځ کشۍ سره مخالف وو خو د دوی رايه قبول نه شوه کله چې د عليرضي‌الله‌عنه فوځ د بصري خواته نږدې ورسيد

قعقاع رضی الله عنه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم صحابي د قاصد په ډول د طلحه رضی الله عنه او د زبیر رضی الله عنه حضور ته ولیږل شو.

قعقاع رضی الله عنه اول د ام المؤ منین سره ملاقات وکړ ام المؤمنین صراحتاً ځواب ورکړ چې زما منظور یوازې اصلاح ده چې په یوه طریقه دا فساد او فتنه ختمه شي او امنیت قایم شي.

قعقاع رضی الله عنه بیا وروسته د طلحه رضی الله عنه او د زبیر رضی الله عنه سره ملاقات وکړ او له هغوی څخه یې سوال وکړ چې تاسې څه تجویز د اصلاح لپاره نیولی دی دوی وویل:

چې بدون د عثمان رضی الله عنه د قاتلینو د قصاص څخه په هیڅ ډول امن نه شي قائمیدای، قعقاع رضی الله عنه وویل: چې دا مطلب ته د رسیدو لاره د مسلمانانو د اتفاق او اتحاد لاره ده او مسلمانانو د اتفاق نه بغیر بل په هیڅ صورت دا کار ممکن نه دی تر څو تاسې د علي رضی الله عنه سره یوځای او متحد شي او بیا د دغه کار لپاره تدبیر ونیول شي دا رایه د طلحه رضی الله عنه او زبیر رضی الله عنه لپاره ډېره غوره او معقوله ښکاره شوه.

قعقاع رضی الله عنه د دې صلحې بشارت علي رضی الله عنه ته په یو عام محضر کې بیان کړ او علي رضی الله عنه زیات خوشحاله شو. تر دریو ورځو پورې دغه ارتباطات او لیکونه واستول په درېیمه ورځ ماښام طلحه رضی الله عنه او زبیر رضی الله عنه یو مکتوب ولېږه، چې سبا ته سهار طلحه رضی الله عنه او علي رضی الله عنه سره ملاقات کوي. دا امر د مفسدانو لپاره ډېر سخت تمام شو ځکه مفسدان پوهېده که چېرته علي رضی الله عنه په تنهایې کې د طلحه رضی الله عنه او زبیر رضی الله عنه سره وګوري نو کېدای شي چې د دوی په باره کې کوم تصمیم ونیسي نو دوی نه غوښتل چې د دوی دا قضیه په سوله تمامه شي او ملاقات صورت نیسي، عبدالله بن سباء منافق چې په ظاهري صورت د اهل تشیع د مذهب پېرو و او هم یې د مفسدانو په راس کې قرار درلوده خپلو ملګرو ته یې

دستور ورکړ چې تاسې نن شپه جنګ اغاز کړئ او بيا به علي رضي الله عنه ته اطلاع وکړو چې مخالف فريق تعرض وکړ، همدارنګه واقعه پېښه شوه، باغيانو او مفسدانو د شپې په اخر نيمايې کې په خودسرۍ جنګ شروع کړ و علي رضي الله عنه ته يې خبر ورکړ چې طلحه رضي الله عنه او زبير رضي الله عنه عهد شکني وکړه او په مخالف کې داسې هنګامه پخش شوه چې علي رضي الله عنه وعده خلافي وکړه، خلاصه دا چې د دواړو ترمنځ يو لوی فساد رامنځ ته شو، طلحه[۱] رضي الله عنه د جنګ په ميدان کې شهيد شو اما زبير رضي الله عنه له جنګ څخه کناره ګيرې، خو په لاره کې د ابن جرموز په واسطه په شهادت ورسيد ابن جرموز په دې غرض چې علي رضي الله عنه ته زېری ورکړي او هم د زبير رضي الله عنه د قتل په مقابل کې يو څه انعام ورڅخه واخلي، نو د علي رضي الله عنه حضور ته حاضر شو او ورته يې وويل: چې ای امير المؤمنين! په تا دې زېرې وي چې ستا دښمن زبير مې قتل کړو.

علي رضي الله عنه وفرمايل: چې زه تا ته د جهنم زېرې درکوم، ابن جرموز وويل: عجيبه انعام دې ما ته رابخشش کړ علي رضي الله عنه وفرمايل: چې زه څه وکړم، محمد صلی الله علیه وسلم ما ته ويلې وو (يا علي بشر قاتل ابن صفيه بالنار)

کله چې علي رضي الله عنه د طلحه رضي الله عنه له شهادت څخه خبر شو نو ويې ويل: (إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّآ إِلَيۡهِ رَٰجِعُونَ ﴿١٥٦﴾)

ای علي هر چا که زما دا د ترور (عمه) زوی قتل کړ ته هغه ته د دوزخ

---

۱- په کوم وخت کې چې پيغمبر صلی الله علیه وسلم د اُحد په غزا کې د کفارو د تورو په منځ کې ګير شو نو په دې ځای کې غير له طلحه څخه بل هېڅوک موجود نه و طلحه رضي الله عنه اول د سپر په ذريعه د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څخه دفاع کوله او کله چې يې سپر دلاسه پرېوت نو د دې لپاره چې پيغمبر صلی الله علیه وسلم ته د کفارو ګذار راونه رسېږي، نو په خپلو لاسونو يې د کفارو د تورو ګذارونه دفعه کول چې بيا يې په دې جګړه کې لاسونه قطعه شو او يو لاس کاملاً فلج او بې کاره شو، نو حضرت علي رضي الله عنه به همېشه د طلحه رضي الله عنه لاسونه د دفاع په خاطر فلجشول.

زړې ورکړه، زبېر د محمد ﷺ د ترور زوی وه، ابن جرموز د دغه خبر په اورېدو سره خودکشي وکړه، علي رضي الله عنه وګورئ هغه څه چې رسول الله ﷺ فرمايلي و. څرنګه ژر يې واقعيت وموندو د جنګ له ختمېدو څخه وروسته علي رضي الله عنه امام حسن عبدالله ابن عباس رضي الله عنه د جنګ ميدان ته د زخميانو د ليدلو په غرض ورغلل کله چې يو مقام ته ورسېدل امام حسن رضي الله عنه اواز وکړ چې ای پلاره زما دې پر الله جل جلاله قسم وي چې په دې ځای کې يو نوجوان د قريشو له خاندان څخه پروت دی، علي رضي الله عنه استعفار ووايه او ويې ويل: چې څوک دی هغه ځواب ورکړ چې محمد بن طلحه رضي الله عنه دی، علي رضي الله عنه وفرمايل: و الله کان شاباً صالحاً [۱] په الله قسم دی چې دا نوجوان يو نيکو کار شخص دی، علي رضي الله عنه ، طلحه رضي الله عنه په جسد ورپېښ شو هغه يې وليد او ورته کېناست او ورته يې وويل:

چې ای ابو محمده! زه چې تا په دې حال ګورم کاشکې زه شل (۲۰) کاله مخکې مړ شوی وای او بيا يې لاسونه راپورته او درې دفعې مچې ياني ښکل کړ او بيا يې وفرمايل: چې دا هماغه لاسونه دي چې د رسول اکرم ﷺ مصائب يې دفع کول.

تر دغه وخته لا طلحه رضي الله عنه نه و وفات شوی چې يو سړی په خوا کې تېرېده او تپوس يې ورځخه وکړ چې ته د چا له لښکر څخه يې؟

هغه شخص وويل: زه د امير المؤمنين له لښکر څخه يم. طلحه رضي الله عنه وويل: ډېر ښه لاس دې را اوږد کړه چې زه له تاسره د علي لپاره بيعت وکړم، بيا يې د دارالفناء څخه دارالبقاء ته روح وسپاره. بيا دا شخص دا واقعه علي رضي الله عنه ته بيان کړه، علي رضي الله عنه تکبير ووايه او بيا يې وفرمايل:

---

۱ - د تطهر الجنان په حواله.

ښه شو چې زما له بيعت سره جنت [۱] ته داخل شو.
له علي رضي الله عنه څخه چا سوال وکړ چې ايا د جمل په واقعه کې شريک کسان مشرکان وو،ده وفرمايل:نه دوی له شرک څخه نفرت درلوده بيا يې سوال وکړ چې ايا منافق و، ويې فرمايل: نه منافق الله جل جلاله ډېر کم يادوئ بيا يې پوښتنه وکړه چې دوی په معيار قرار درلوده.
علي رضي الله عنه وفرمايل: (إِخْوَانُنَا بَغَوْا عَلَيْنَا)
دوی زما وروڼه وو، مګر له ماڅخه يې بغاوت کړی و. د جمل په دې واقعه کې د ام المؤمنين بي بي عائشې سره شپږ سوه (۶۰۰) سواره او شپږ سوه (۶۰۰) اوښان وو او ام المؤمنين هم په اوښ باندې سپره وه ځکه دا جګړه د جمل د جګړې په نوم يادوي. ام المومنين عائشه رضي الله عنها د پيغمبر صلی الله عليه وسلم نورو ازواجو مطهراتو له دغه سفر څخه ډېره منع کړه او دليل يې ورته د قران دا ايت (وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ) ولوستل ام المؤمنين بيا هم خپل قصد عملي کړ په دا مشوره کې مروان بن حکم او سعيد ابن عاص او وليد بن عقبه ملګري وو، وروسته د جنګ له ختمېدو څخه علي رضي الله عنه د بي بي عائشې رضي الله عنها ليدو ته ورغی او ډېره ډاډګېرنه يې ورکړه او بيا يې په ډېر احترام په داسې حال کې چې تر يو ځايه پلی ورسره و، د مدينې منورې په لور رخصت کړه.

## د صفين د جنګ خبر

يوه ورځ محمد صلی الله عليه وسلم وفرمايل: چې تر هغې به قيامت رانه شي ترڅو دوه داسې ډلې پخپلو منځو کې سره په جنګ کوتې پورې نه کړي چې له هغو څخه به د هرې ډلې دعوا ييخې يوه وي. علما [۲] وايي چې دا پېشګويي د علي رضي الله عنه او امير معاويه په جنګونو صدق کوي.

۱- ازالة الخفاء فی التاريخ الخلفاء په حواله
۲- صحيح المسلم

## د صفين جګړه

د جمل له واقعې څخه وروسته د معاويه لښکر د دمشق په طرف د فرات د ښار په شاوخوا کې ځای پر ځای شو او د علي لښکر د کوفي په شاوخوا کې مستقر او د معاويه د لښکر څارنه يې کوله چې تقريباً تر دوو مياشتو پورې دا حالت دوام وکړ.

خليفه د دې لپاره چې په پای کې له ملامتيا څخه خلاص وي. لومړی يې جرير بن عبدالله معاويه ته چې په شام کې و ورولېږه چې د جګړې د ناوړو عواقبو څخه يې خبر او بيعت ته يې رضا کړي خو دغې مذاکري کومه ګټه ونه رسوله.

معاويه رضي الله عنه له خپلو لښکرو سره له شامه د جګړې لپاره د علي رضي الله عنه په طرف راوخوځېده دواړه لښکرې په هغه ځای کې صفين نومېږي سره مخامخ شوي د هجرت په ۳۷ کال د صفري په اول دېره کلکه جګړه شروع شوه په اوله مرحله کې د معاويه لښکر نږدې و چې کامياب شي خو په کوم وخت کې چې د عراق له خوا تازه لښکر د علي رضي الله عنه کومک ته راورسيد او متفرقه لښکرې بېرته سره راجمعه کړي او د لښکرو قومندان مالک بن اشتر نخعي په مخالف لښکر باندې په ناخاپي ډول حمله وکړه بيا د علي رضي الله عنه د لښکرو کاميابي په قطعي ډول ثابته شوه.

کله چې معاويه رضي الله عنه د اوضاعو خړ پړتيا وليده، دې ته مجبور شو چې بېرته ولاړ شي خو دلته عمرو بن العاص رضي الله عنه داسې سلا او مشوره ورکړه چې تښتېدلو سپاهيانو ته داسې لارښونه وکړي چې د قران کريم پاڼې د نېزو په څوکو کې ځکې کړي او په لوړ اواز سره ووايې چې د څه لپاره خوشې وينې سره توېوئ؟

راځئ چې دا قران زموږ او ستاسې حکم وګرځو، دا خبره ژر تر ژره ومنل شوه.

د شام د سپاهيانو له خوا قران کريم د نېزو په څوکو جګ کړای شو او غږونه وشول د څه لپاره يو له بل سره وژنو راځئ کتاب الله ترمخه محاکمه سره وکړو. کله چې علي رضي الله عنه ته ښکاره شوه، چې دې هيلې د دې پر سپاهيانو اغېزه وکړه هرڅه چې يې وکول چې خپل لښکريان د دښمن په دې غولوونکې هيله پوه کړي ګټه يې ونکړه لښکريانو د دې خبره ونه منله دې ته تينګ شول چې له جګړې څخه ژر لاس واخلي علي رضي الله عنه وويل: چې دا کلمه حقه ده اما دا اراده باطله ده، کله چې د علي رضي الله عنه وينا ته مجبور شو چې د خپل لښکر سپاه سالار مالک ابن اشتر ته چې دښمن پسې اخيستی و امر وکړ چې له جګړو څخه لاس واخلي او بېرته خپل لښکر ته راوګرځي مالک هم د دې امر ته غاړه کېښوده په همدې نسبت د دواړو لښکرې په پرېښودلو رضا او متباقي سپاهيانو په همدې هيله له ورکی، او تباهی، څخه ځان وژغوره.

## حکميت

کله چې پېښه په دې ډول وه او بيا يې هم د جګړې احتمال درلوده نو ددې پېښې د حل لپاره له دواړو خواوو څخه يو يو منځګړی وټاکل شو ترڅو چې دا موضوع د الله جل جلاله کتاب سره سمه فيصله کړي د معاويه له خوا عمرو بن العاص رضي الله عنه او د علي رضي الله عنه لخوا ابو موسی[1] اشعري په ښه توګه وټاکل شو سره له دې چې علي رضي الله عنه په دې کار راضي نه و ځکه دی پوهېده چې ابو موسی اشعري په ښه توګه د دې کار د سرته رسولو له عهد څخه نشي وتلای کله چې د حکميت دا تړون وشو او د صفين جګړه سرته ورسيده نو علي رضي الله عنه سره د خپلو لښکرو کوفي ته او معاويه رضي الله عنه د شام لورته وخوځېدل، د هجرت په ٣٧ کال دروژې په مياشت کې

---

١- د ابو موسی اشعري اصلي نوم عبدالله بن قيس دی.

منځکړو په دومة الجندل کې غونډه وکړه، وروسته له ډېرو خبرو اترو يې دغه خبره سره غوټه کړه چې عليﷺ او معاويهﷺ دواړه د خلافت وړ نه دي، مسلمانان دې دوی دواړه له خلافت څخه معزول او پرځای دې بل څوک وټاکي.

عمرو بن العاصﷺ ظاهراً د احترام په توګه موسی اشعري ته موکه ورکړه او هيله يې ترې وکړه ترڅو د فيصلې موضوع چې د عالم اسلام د يووالي لپاره حاصله شوې ده خلکو ته ورسوي ابو موسی اشعري سهوه شو فوراً منبر ته وخوت او داسې يې وويل: موږ دواړو د خلافت په باره کې ډېر ژور فکر وکړ، وروستنۍ فيصله مو داده چې د عليﷺ او معاويهﷺ دواړه د مسلمانانو د نفاق سبب ګرځېدلي او د خلافت وړ نه بلل کېږي، موږ دواړه له خلافت څخه موقوف کړل ترڅو مسلمانان په خپله د دې کار د اجراء لپاره بل څوک وټاکي.

وروسته له هغه عمرو بن العاصﷺ راولاړ شو او ويې ويل: د ابو موسی فيصله مو واورېده زه هم د هغه خبره تائيده وم عليﷺ مې له خلافت څخه موقوف او معاويهﷺ د هغه پرځای خليفه وټاکه، دا حکميت مسلمانان نور هم بې اتفاقه کړل او د دواړو خواوو قضيې د حل لپاره يو ځل بيا جګړې حتمي وبلله د سپاهيانو په سنبالولو يې پيل سره وکړ، خو دلته عليﷺ د ډېرو مشکلاتو سره مخامخ شو ځکه د د په سپاهيانو کې نفاق پېښ شو هغو خلکو چې ده ته د حکمت رايه ورکړې وه اوس د دې پر ضد ولاړ او د دې په کړو وړو يې اعتراضونه کول او ويل يې ستاسې د اللهﷻ په کار څه؟

هغه وخت چې بری زموږ وو حکميت دې ومانه د علي سپاهيان په خپلو منځونو کې دوې ډلې شوې چې يوه د بلې مخالفه وه، هغه مخالفه ډله چې اوس د خوارجو په نوم يادېږي. د عليﷺ سره کوفې ته رانغلل او په

حرورا نومې ځای کې مېشت شول. د دوی تعدا تقریباً دولس زره (۱۲۰۰۰) تنه وو، ټولو د علي رضي الله عنه مخالفت ته ملاوي تړلې وې، چې بیا د دوی ترمنځ خونړۍ جګړې پېښې شوې، علي رضي الله عنه د دې وخت ونه مینده چې د شام خواته توجه وکړي، معاویه رضي الله عنه له وخت څخه استفاده وکړه او د خلافت اعلان یې وکړ او ورځ په ورځ داسې قوي کېده ترڅو یې ځینې اسلامي ممالک لکه مصر او یمن هم ونیول خو علي رضي الله عنه په هېڅ ډول سره په دې وخت کې بریالي نشو چې له کوفي څخه یو قدم بل طرف ته ولاړ شي ځکه په کوفه او بصره کې خوارجو جدا خلیفه (نهروان) انتخاب کړ او د علي رضي الله عنه په مقابل کې یې سنګر جوړ کړ مګر بیا د علي رضي الله عنه له خوا د شکست سره مخامخ شول، د صفین په جګړه کې نه علي رضي الله عنه او نه معاویه رضي الله عنه ته کوم مسؤلیت (راجع دی) دا چې کوم خلک دوی په دې موضوع کې مسؤل شمېري البته دا کاملاً افتراء ده.

په دې جنګ چې کوم مسائل رامنځ ته شوي دي دا کومه د عناد، حسد او د زړونو د عداوت مسئله نه ده البته په نېتونو کې فساد وجود نه درلوده، چې د هغوی د جنګ د جریان په حالت کې د یو سپاهي واقعه په لاندې ډول ده.

د جنګ په جریان کې ابوهریرة[1] د علي رضي الله عنه د ملګرو او همکارانو څخه و مګر هره ورځ به یې د معاویه رضي الله عنه په دسترخوان ډوډۍ خوړله، یوه ورځ یو چا ورته وویل: ای ابي هریره! ته عجیبه خوی او عادت لري، لمونځ د علي رضي الله عنه په امامت ادا کوي او په جنګي امورو کې هم د هغه سره همکاري کوي، مګر غذا دلته مصرفوي؟

ابو هریرة رضي الله عنه وفرمایل: د لمانځه اداء کول د هغه په امامت ښه

---

۱ - د ابو هریرة خپل نوم عبدالرحمن بن صخر و ۲۰: طبري تاریخ

دي ځکه چې برحقه خلیفه دی او د هغه د قومندې لاندې پرما جهاد کول لازم دي.
چون دلته تاسې بهتره غذا مصرفوئ نو زه هم دلته راځم او له تاسې ډوډۍ خورم.
معاویه رضي الله عنه د دې خبرو ته ښه په دقت متوجه و او کله چې یې خبرې واورېدې ویې خندل. د صفین جګړې په جریان کې خبر راورسید چې مسیحي رومیان [۱] په مدینه منوره کې د حملې کولو قصد لري، ځکه چې رومیانو ولیدل چې مسلمانان دوه فرقې شول، نو وخت یې غنیمت وګانه او د جنګ سامان یې برابر کړ، کله چې معاویه رضي الله عنه خبر شو فوراً یې لیک ورواستاوه او په لیک کې یې ورته ولیکل: ای د روم سپیو خلکو تاسې زموږ د خانه جنګۍ څخه استفاده نشې کولای زما په الله جل جلاله قسم چې د علي رضي الله عنه له لښکریانو څخه اولنې سپاهي چې ستاسې د سرکوبۍ لپاره حاضر دی د هغه نوم معاویه بن ابوسفیان دی، د دې لیک په لېږلو سره د مسیحیانو جرئت ختم او نا امیده شو.
د جنګ [۲] له ختمېدو څخه وروسته د علي رضي الله عنه او معاویه رضي الله عنه دواړو یو د بل په مقابل کې ډېر معقول کلیمات استعمالول، علي رضي الله عنه وویل: ای خلکو! د معاویه حکومت ته بد مه وایئ، په الله جل جلاله قسم دی که هر وخت معاویه رضي الله عنه نه وي نو امنیت به قایم نشي او بد امنیتي به انتشار پیدا کړي.
علي رضي الله عنه په یوه اعلامیه کې نشر کړل چې ای د شام خلکو! موږ واحد یو. پیغمبر زموږ یو دی، په الله جل جلاله او رسول صلی الله علیه وسلم ایمان لرو، هغوی پر موږ

---

۱ - په دې وخت کې د رومیانو کوچنۍ ریاست په روم کې باقي پاتې و.
۲ - ازالة الخفاء

کوم فوقیت نه لري او مونږ پر هغوی کوم فوقیت نه لرو، یوازې اختلاف د عثمان رضي الله عنه په هکله دی، الله جل جلاله پوهیږي چې زه په دې هکله بری الزمه یم.

معاویه رضي الله عنه[۱] په یو لیک کې علي رضي الله عنه ته ولیکل:

( اما شرفك فى الاسلام وقرابتك من النبي صلى الله عليه وسلم فلست ارفعه).

ژباړه: ته چې کوم شرف په اسلام کې لرې او کومه رشته دارې اوخپلولي چې د الله جل جلاله د رسول سره لرې زه له هغه څخه منکر نه یم.

مؤرخینو د معاویه د اخلاقو اوصافو په باره کې ډېر څه لیکلي دي.

خو اصلي واقعیت داسې دی چې معاویه رضي الله عنه یو جلیل القدر صحابي او د وحي کاتب هم و، دا چې معاویه ابن ابوسفیان او د علي رضي الله عنه په منځ کې بعضي منازعات او بعضي مسائل پېښ یا واقعه شوي دي او د علي رضي الله عنه د خلافت یې انکار کاوه.

په اصل کې موضوع د عثمان رضي الله عنه د شهادت او دویم د مفسدینو او منافقینو زیات فعالیت و چې په خپل وخت کې د مسلمانانو په لباس کې سرته رساوه، معاویه رضي الله عنه د خپل ځان په هکله وویل: که چېرته زما او د خلکو ترمنځ دور پېښو تارونه وتړل شي، نو دا به قطع نشي ځکه چې که خلک دا تار کش کړي نو زه به هغه ورخوشي کړم او که چېرته هغوی راخوشې کړي زه به یې نه کش کوم.

## د علي رضي الله عنه شهادت

د علي رضي الله عنه د شهادت اطلاع پخوا د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په واسطه پېشبني شوي وه، یوه ورځ محمد صلی الله علیه وسلم علي رضي الله عنه ته وفرمایل: چې یا علي! په پخوانیو خلکو کې بد بخت ترین شخص هغه څوک و چې د صالح علیه

---

۱- شرح نهج البلاغه ابن میسم.

السلام د ناقه پښې يې پرېکړې وي او په باقي خلکو کې بدبخت ترين شخص هغه څوک دی چې ستا مبارکه ږيره په وينو رنګ کړي.

د علي رضي الله عنه د شهادت جريان د صفين له واقعې څخه وروسته شروع کېږي، کله چې علي رضي الله عنه د صفين د جګړې څخه د کوفې په طرف ولاړ او هلته د خوارجو مشر د نهروان سره لاس په ګرېوان شو او هغوی ته يې شکست ورکړ، نو بيا د نهروان په دستور درې تنه عبدالرحمن بن ملجم، برک بن عبدالله، عمرو بن بکر تميمي په مکه معظمه کې د علي رضي الله عنه او امير معاويه او عمروبن العاص د قتل لپاره انتخاب شول چې دوی به درې واړه په يوه او په يوه وخت کې په شهادت رسوي.

عبدالرحمن بن ملجم د علي رضي الله عنه د قتل کولو ذمه واري په غاړه واخېسته او برلا بن عبدالله معاويه رضي الله عنه د قتل لپاره او عمرو بن بکر د عمرو بن العاص رضي الله عنه له قتل لپاره مؤظف شول کله چې عبدالرحمن بن ملجم کوفې ته ورسيد. د علي رضي الله عنه د قتلولو لپاره اماده ګي ونيوله، مګر موفق نشو بله ورځ علي رضي الله عنه د سهار د لمانځه لپاره په چالاکۍ سره د کوفې مسجد ته روان و چې ابن ملجم ورته په لاره کې پټ شوی و او ناګهانه يې په ده د توري ګذار وکړ او مخامخ يې په سر وواهه او علي رضي الله عنه په وينو کې لت پت شو او ږيره يې په وينو رنګ شوه.

امام حسن رضي الله عنه فرمايي: کله چې دا واقعه پېښه شوه زه د امير المؤمنين پسې روان وم، کله چې امير المؤمنين په ځمکه پرېوت نو يې وويل: (فُزتُ و رب الكعبة) زما دی د الله جل جلاله په کعبه قسم وي چې همدا زما ارزو او اميد و چې زه ورته ورسيدم.

وروسته له دې واقعې څخه خلکو د ابن ملجم څلور خواوې محاصره کړي او ابن ملجم يې ونيو، علي رضي الله عنه وفرمايل چې ای خلکو ابن ملجم مه قتلوئ تاسې يې له ځان سره اسير کړئ که چېرته ما صحت وموندہ زما

اختيار دى چې زه يې بخشش كوم او كه جزاء ورته وركوم او كه چېرته زه روغ نه شوم نو تاسې يې ببيا په سمغه توره يو گذار په سر ووهئ ځكه چې زه يې يو گذار په سر وهلى يم، دا واقعه د جمعې پر ورځ واقع او يكشنبې په شپه وفات شو.

علي رضي الله عنه د هجرت په څلوېښتم كال د روژې په اولسمه نېټه د د رېشپيتو (٦٣) كلونو په عمر له دې فاني نړۍ څخه سترگې پټې كړې او د الله جل جلاله رحمت ته يې ځان وسپاره.

د علي رضي الله عنه د مقبرې په هكله اختلافات دي مشهور قول دا دي چې د نوموړي مبارک مقبره په نجف كې ده. عمرو بن عاص رضي الله عنه په دې ورځ ناروغه و او په عوض يې د مصر (قاضي خارجه بن حذفه) چې د لمانځه لپاره نائب تعين شوى و سهواً د عمرو بن العاص رضي الله عنه په ځاى ووژل شو او د برک بن عبدالله له خوا امير معاويه ټپي شو خو دومره مهلک نه و، د علي رضي الله عنه له وفات څخه وروسته د راشده خليفه گانو دوره پاى ته ورسيده كله چې امام حسن رضي الله عنه خلكو لخوا خليفه مقرر شو، مگر امام حسن رضي الله عنه له مسلمانانو د جنگ په خاطر د معاويه رضي الله عنه په گټه استعفى وركړه يعنې نه يې غوښتل چې نور د مسلمانانو په منځ كې وينې توې شي.

امام حسن رضي الله عنه د استعفى له وركولو څخه تقريباً لس (١٠) كاله وروسته د هجرت په يو پنځوسم (٥١) كال د بعضو روايتونو له مخې په زهرو ووژل شو او د فاني نړۍ څخه يې سترگې پټې كړې.

## د علي رضي الله عنه اوصاف او نصايح

څلورم خليفه علي رضي الله عنه د غوره اوصافو څښتن او صادق انسان و، د ايمان نور د ده په زړه كې له ورايه ځلېده په خپل نفس كې يې حميده اخلاقو ته ځاى وركړى و، د علي رضي الله عنه يو عابد شخص و او عبادت يې زيات دوست درلوده. د علي رضي الله عنه له زياتو صفاتو سره سره شجاعت،

زهد، علم بې ساری و او شجاع یې ضرب المثل و.
له مرګ څخه یې هېڅ وخت ترس نه درلوده، الله تعالی ﷻ د ته جسماني قوت او جنګي مهارت ورکړی و، د عربو له هر پهلوان سره چې مخامخ کېده هغه به یې ځملاوه له د څخه به دا الفاظ زیات اورېدل کېده، چې ای دنیا له ماڅخه به غیر بل چاته دوکه او فریب ورکړه، ټول عمر یې په فقر مشکلاتو کې تېراوه او ویل به یې:
چې ای دنیا زه تاته بائن طلاق (دري طلاقه) درکوم ستا عمر ډېر کم دی او غم دې ډېر زیات دی.

١. علي رضي الله عنه به همېشه خلکو ته ویل چې ای خلکو بې د الله ﷻ څخه بل د هېچا څخه ډار او ویره مه کوئ. مګر له خپلو ګناهونو څخه زیات وویرېږئ.
٢. هر چا چې ځان وپېژانده الله ﷻ وپېژانده.
٣. هر انسان د خپلې ژبې لاندې پټ دی.
۴. اوس ټول خلک ویده دي خو چې کله مړه شي بیا به بیدار شي.
۵. ادنی علم د زیات مال څخه بهتر دی، ځکه علم تا ساتي او ته به مال ساتې.
٦. څوک چې خوږه ژبه لري د هغه ورونه زیات وي.
٧. د ایمان ښکاره نښه او علامه په هغه ځای کې معلومېږي چې هلته د رښتیا د ویلو په واسطه نقصان او زیان زیات وي او بیا په هغه ځای کې رښتیا ووایي.
٨. یوه ورځ علي رضي الله عنه په هدیره کې ناست و، یو چا ورته وویل: ای ابوالحسنه! ولې دلته ناست یې؟ ده وویل: په دې ځای کې ډېر ښه همسایګان دي اګر چې د چا په یاد نه دي خو خلک د اخرت خواته متوجه کوي.

۹. هر کله چې تقدير راشي تدبير بېکاره کېږي.

۱۰. په اخري وصيت کې فرمايلي دي، چې ای خلکو! په توحيد قايم اوسئ، هېڅوک له الله جل جلاله سره شريک نه کړئ که چېرته تاسو دا دوه کارونه وکړل ټول بد کارونه له تاسو فرار کوي، توحيد او سنت د دين دوه داسې محکمې ستنې دي چې تاسې به همېشه به هدايت کې اوسئ.

**د راشده خليفه ګانو دورې ته يوه لنډه کتنه**

د پيغمبر ﷺ له رحلت څخه وروسته په شپږ سوه دېرش (٦۳۰) ميلادي کال يعنې په (۱۱) هجري کال ابوبکر صديق رضي الله عنه د مسلمانانو خليفه شو، وروسته له هغه څخه عمر رضي الله عنه، عثمان رضي الله عنه او علي رضي الله عنه يو په بل پسې د خلافت مقام ته ورسيد.

دا دوره نږدې دېرش (۳۰) کاله وه، چې د پيغمبر ﷺ له رحلت څخه شروع او تر ۴۱ کاله پورې دوام وکړ، په اسلامي تاريخ کې د راشده خليفه ګانو په نامه يادېږي او دا دوره د هغو نورو اسلامي دورو څخه چې وروسته له دوی راغلي زښته ډېر توپير لري، ځکه دغوڅلورو خليفه ګانو تل کوښښ کاوه، چې په خپلو کارونونو کې يو وېښته هم د الله جل جلاله د لارې او د پيغمبر ﷺ له سنتو څخه تېری ونه کړي بل په دې دوره کې ژوند هماغسې ساده او بې الايشه ليدل کېده لکه چې د پيغمبر ﷺ په زمانه کې وه په دې دوره کې عدل، يووالی، وروروګلوي، انصاف او نور ښېګڼې په حقيقي او رښتيا صورت سره ليدل کېده.

خليفه به د مسلمانانو په خوښه ټاکل کېده او له نورو اسلامي اشخاصو څخه به يې کوم امتياز او لوړوالی نه درلوده، د ميراثي پاچا يې موضوع هېڅ وجود نه درلوده خليفه ګانو به د اسلامي عوايدو څخه د نورو مسلمانانو په څېر ګټه اخېسته او يو ډېر ساده ژوند به يې کاوه، پهره دار موجود نه و، هر چا په هر وخت کې يعنې هم په شپه او هم په ورځ کې

کولای شو چې خلیفه ته ورشي او خپل مطلب په ډېر ډاډ عرض او له قراني احکامو او نبوي شریعت سره سم خپله فیصله وغواړي، راشده خلفاء رضوان الله علیهم برم، شان او شوکت ، کبر او غرورېو مخ نه درلوده، د نورو عمومي وګړو په څېر یې ساده ژوند کاوه، کار کول یې پیغور نه باله.

د خمتا کالي به یې اغوستل، پر پوزې به کېناستل ښکلې او لوړې، لوړې ماڼۍ یې نه درلودې، ډېر وخت به یې په نیم نس وږي شپې تېرولې په کوڅو او بازار کې به شپه او ورځ ګرځېدل او د بې وزلو او مظلومو مسلمانانو په حال به یې ځانونه خبرول او بازخواست به یې کاوه، خلافت دوی ته ډېر ستر او له مسؤلیته ډک بار ښکارېده ، ځانونه به یې ملت او الله جل جلاله ته مسؤل بلل او ویل به یې چې هرو مرو زموږ څخه د خلکو د حقوقو پوښتنې کېږي هېڅکله د الله جل جلاله ډار او د اخرت د ورځې پوښتنې له زړونو څخه نه وتلې.

لکه چې عمر رضي الله عنه به تل داسې ویل که د اخرت په ورځ د خلافت د بار مسؤلیت څخه بې له ثواب او عذابه خلاص شم دابه زما سعادت وي.

راشده خلیفه ګانو خپلې تولې میراڼې او همتونه د ملت د خدمت په لاره کې خرڅول، کوښښ یې کاوه چې پرچا ظلم او تېری ونشي، لکه چې وایې: د شرقي روم امپراطور یانې د هرقل نماینده یوه ورځ د عمر رضي الله عنه ته راغی ویې غوښتل چې ورسره وګوري خلکو ورته وویل: خلیفه له مدینې څخه بهر وتلی دی.

د یو لار ښوونکي سره سفیر د عمر رضي الله عنه حضور بېرته ورغی ګوري چې یو سړې په خاورو پروت او خوله یې پرمخ بهېږي، لارښوونکي ورته وویل: زموږ خلیفه دا دی سفیر د هغه لیدو ته حیران پاتې شو تکان یې وخوړ او په لړزه راغی نه یې منله چې یو دا ډول مشهور زما مدار دی په داسې

ساده ډول ژوند ولري په همدې حالت کې وويل: حکومت دې وکړ، عدل دې وکړ ټول دې په قرار کړل او هوسا بېده شوي، بل دا چې عمرﷺ يوريشلم ته ورتلو يوازې يو مريې ورسره و او دواړه وار په وار په اوښ سپرېده نو څرنګه چې هغه ځاى ته ( د دوى استقبال کېده) ورسېدل د سپرلۍ وار د غلام و چې غلام سپور او بادار يې ترجلب لاندې پلي روان و، مسيحان د دې منظې له ليدو څخه هک پک پاتې شول په تاريخ کې تر دې بل د ښه مساوات برابري مثال نه ليدل کېده.

وايي يوه ورځ د خپل غلام سره بازار ته ولاړ دوه جوړه جامې واخيستلې او غلام ته يې کېښودلې چې هر يو د ستا خوښه وي ته اختيار لري هماغه جوړه واخله، هغه بله جوړه ماته پرېږده.

د محمد ﷺ په زمانه کې د حکومت طرز چې په خپله به ده مبارک ﷺ د حکومت امارت اوقضاوت کارونه اجراء کول او په نورو لويو لويو کارونو کې به يې اصحابو سره سلا او مشوره کوله.

کله چې د راشده خليفه ګانو وار راغى دوى هم همدغه د پيغمبرﷺ سنت مراعات او په ټولو کارونو کې به يې له اصحابو سره مشوره کوله.

د خليفه ډېره غټه دنده د الهي احکامو او نبوي سنتو اجراء د مسلمانانو د امورو اداره ولجو (غنايمو) ويشل، زکوة او جزيه اخيستل او بيا مستحيقنو ته ور ويشل و، ديني امور يې د قران او د حضرت پيغمبرﷺ له وينا او کړو وړو سره سم په ځاى کول که به کومه قضيه پېښه شوه چې تر الهې حکم لاندې به نه راتله نو له اصحابو سره به يې مشوره کوله او د رايو په ډېروالي به يې حکم کاوه، په دغو دورو کې قانون عبارت له قران کريم او د پيغمبر ﷺ له وينا او کړو وړو څخه و چې ورو ورو د خلفاوو کړه وړه هم د سلامي قانون له اجراوو څخه وګرځېدل.

په پخوانيو زمانو کې اسلامي عسکر عبارت له انصارو او مهاجرينو

څخه و چې په خپله خوښه به جهاد ته حاضرېدل او د مجاهدينو په صف کې به درېدل او د جهاد لپاره به چمتو او اماده کېدل، د غنايمو له مالو څخه به يې برخه اخيسته، دغه عسکر له سپرو او پیادو څخه مرکب وسلې يې عبارت له تورې، نېزې، سپر او زغرې څخه دي، کله چې د فتوحاتو لمن پراخه شوه له منجنيق او خود څخه يې هم کار اخيسته د ابوبکر صديقﷺ تر دورې پورې دغو مجاهدينو ثابت او معلوم معاش او هم يې نومونه په کوم خاص دفتر کې ثبت يا درج نه وو، يوازې له ولجو څخه به يې برخه اخيسته.

د عمرﷺ په دوره کې منظم فوځ او دايمي عسکر منځ ته راغلل، نومونه به يې په دفتر کې ثبت کېدل او هر چاته که منصبدار و او که سپاهي له بيت المال څخه ورته معلوم معاش مقرر شو او د رخصتيو لپاره هم قانون وضعه شو.

د پيغمبر ﷺ په زمانه کې عايدات يوازې صدقات و چې مسلمانانو ته به يې ورکول، کله چې غزاګانې شروع شوې د ولجو پنځمه برخه هم په دغو عايداتو ورزياته شوه، خو کومه خاصه پانګه ترمنځ موجوده نه وه څه چې به راتلل ژر تر ژره به مستحقينو ته ورويشل کېده که څه هم د ابوبکر صديقﷺ په زمانه کې بيت المال جوړ شوی و خو پانګه او ذخيره يې نه درلوده د عمرﷺ دخلافت په دوره کې د ځمکو د ماليو او جزيو او نور له هر پلوه مخ په زياتېدو شول شو، عربانو د جاهليت په دوره کې له ليک او لوست سره ډېره لږه علاقه درلوده، نظري علمونه په همدې يوه توګه له پلاره زوی ته پاتې کېدل، کتاب ترمنځ موجود نه و، د ليکوالانو شمېر هم ډېر لږ و چې ليک يې د سفر په وختونو کې له ګاونډيو هېوادونو څخه زده کړی و، خو د راشده خلفاوو په وخت کې د ليکوالو شمېر په تېره بيا چې ايران، شام، فلسطين، مصر او داسې نور

فتحه شول خورا ډېر او د خلکو د لیک او لوست په طرف پام شو او یو شمېر لیکونکي له مفتوحه ممالکو څخه راغلل او په مدینه کې به یې د مدینې له خلکو سره به یې په لیک او لوست کې مرسته کوله.

## د اسلامي فتوحاتو علتونه

یو له هغوی په زړه پورې موضوعات چې د تاریخ پوهانو «مسلمان وي او که غیر مسلمان» توجه یې وړ اړولې ده د اسلامي فتوحاتو علتونه دي ځکه د ډېرې حیرانتیا ځای دی، چې څرنګه یوه ډله بې نظمه خلک چې نه یې شتمني درلوده او نه نور شیان په څه ډول د نیول شو هېوادونو له خلکو سره سم او مقایسه شول او داسې بریالتیا وي لاس ته راوستې چې د بشر په تاریخ کې ساری نه لیدل کېږي.

د لودیځو تاریخ پوهانو د مسلمانانو د دې بریالتیا علت یوازې د دغو دوو هېوادونو «ایران او ختیځ روم» د اوضاعو خرابې تیا بللې ده، وایې کله چې مسلمانانو په فتوحاتو لاس پورې کړ د دغو دواړو هېوادونو قوه خپلو ځانګړیو اړو دړونو له منځه وړې وه، خو بیا هم تر دې اندازې نه وضعیف شوي چې د یوې ډلې ډېر ضعیفو کمزورو خلکو له لاسه ژوبل او له مینځه ووځي، لکه چې په هغو جګړو کې چې د دغو دوو هېوادونو «ایران او روم» او عربو ترمنځ پېښې شوې علاوه پر دې چې بشپړ تجهیزات یې لرل دایې هم وکولای شوای چې د عربو په مقابله کې یو په شمېر او یو په اوه لښکر هم د جګړې ډګر ته ولېږدوي.

ځینې وختونه به یې له ډېرو کلکو کلاګانو او سنګرونو څخه جګړه کوله عربو دا ډول الات هم نه لرل چې کلاګانې سورئ کړي خپلې تورې به یې ځینې وخت د خرما په پوټکو کې ساتلې، ډېرو اسونه یې زینونه هم نه درلودل، د نېزو او غشو څوکې یې بالعموم له هډوکو څخه جوړې شوې وې، د قادسیې په جګړه کې کله چې ایرانیانو د دوی نېزې او غشي

وليدل حيران پاتې شول، چې څرنګه دا بې وزله عربان دغومره زړه ور شول، چې له ايران سره سيالي کوي، د ايران او روم تاريخ پوهان د دوی «د عربو» د وړانديوالي او چټک پرمختګ بل علت داسې ليکي: چې دوی خورا بې وزلي او خواران وو او ولجو ته به يې ډېره هڅه کوله، په همدغه سبب به يې په ډېر زړه ورتيا جګړه کوله اوسوبه يې لاس ته راوستله، پخوا تر اسلام د خپل ژوندانه د ساتنې لپاره يې د تاراکونو او لوټولو سره عادت نيولې و، خو اسلام دا ټول ناوړه دودونه له مينځه ويوړل، دی ته اړ وو چې د خپل ژوندانه وسايل له بل پلوه بشپړ کړي نو له دې کبله اسلامي اوامرو له کفارو سره جهاد (غزا) واجب کړه او مسلمانانه د دوی لپاره چې هم خپل اسلامي او ديني فرايض پرځای کړي او هم د خپل ژوندانه لارې چارې برابرې او چمتو کړي په فتوحاتو لاس پورې کړ خو بيا هم دا خبره منځ ته نه راځي چې بايد د دوی فقر او بې وزليتوب د دوی د فتوحاتو مانع ګرځېدلی وای ځکه جګړه بې له شتمنۍ او سرمايې څخه هيڅ امکان نه لري.

درېيم علت: يې تاريخ پوهان داسې ليکي چې د قران کريم ښکاره وعدو او د پيغمبر ويناګانو چې د کسری او د قيصرانو د خزانو په باره کې يې دوی ته ورکړي وي او دوی هم پوره ډاډ درلوده چې دا وعدې دروغ نه دي او هرومرو عملي کېږي نو په همدې نسبت به په جګړو کې زړه ور او وړانده تلل دا ښکاره او منلې خبره ده، چې په هره اندازه چې د يو سپاهي روحيه قوي وي په هغې اندازه د سوبې او برې په لار کې وړاندې ځي او په همدې نسبت به يې د دښمن ډېروالی اوعسکري تجهيزات ترنظره هيڅ بلکې په هره اندازه به چې عسکري تجهيزات زيات وو دوی به خوشحالېدل، ځکه دا به يې ويل چې: ډېره ولجه به لاس ته راشي.

څلورم علت: د مسلمانانو د پرمختګ د شهادت مسئله وه، ځکه مسلمانانو کلکه عقيده درلوده، که د کفارو په مقابل کې شهيدان شو د

تل لپاره به مو جنت ځای وي که ژوندي پاتې شو، نو غازیان او فاتح به راته ویل کېږي، د ولجو د مال برخه به هم راکړل شي د بدر په جګړه کې حضرت پیغمبرﷺ مسلمانان د جګړي لپاره داسې تشویقول: هر څوک چې په جګړه کې ټینګار وکړي ځای یې جنت دی، نو په جګړه کې مجاهدینو دوه شیان په نظر کې نیولي وو شهادت یا فتحه ځکه اسلامي اوامرو له جګړې تېښته غندې او الله تعالیﷻ هم هغه کسان چې د کفارو له جګړې څخه وتښتي کرکه کوله او تېښته یې پېغور بلله، بل دا چې له دوی سره به په جګړه کې ښځې او ماشومان هم وو، ښه پوهېدل که ماتې وکړو ښځې او کوچنیان به مو د کفارو په لاس کې کنیزوځي او که ټینګار وکړو نوفتحه یا شهادت په همدې نسبت یې د شهادت د لوړې مرتبې په نسبت هڅه کوله د ښمنان به د دوی دا قربانۍ ته ګوته په غاښ نیولي حیرانه پاتې او په ډېر تعجب به یې داسې پوښتنه ترې کوله: ای مسلمانانو به په ځواب کې ورته ویل: غواړو د تل لپاره ژوندي[1] او جنت مو ځای وي.

پنځم علت: د مسلمانانو د پرمختګ د مړینې او تقدیر مسئله وه، ځکه دوی ټینګه عقیده درلوده چې د مړینې نېټه مو ټاکلې ده او په خپل وخت پښېږي چې یوه ګړۍ وروسته یا مخکې نشي کېدای او که مرګ مو په تقدیر کې نه وي ټاکلی نو د دښمن په توره هم نه وژل کېږو.

شپږم علت : د مسلمانانو د فتحي داو چې پاک قران د ټولو ؛ منځ د وروری مو فرمایل او د ولجو له مالونو څخه او په بیت المال کې هم یوه برابره برخه ورته ټاکلې وه، په همدې نسبت چې حقوق یې نه ضایع کېدل په ډېره زړه ور تیا یې جګړه کوله، بالعکس د دښمن سپاهیانو د څو تنو

---

۱- ولا تقولوا لمن یقتل في سبیل الله اموات بل احیاء ولکن لاتشعرون سورة البقرة ایت ۱۵۴

ظالمانو او خود غرضو حاکمانو د خوښۍ لپاره ځانونه وژل.
اوم علت: چې مسلمانانو یې په ټولو جګړو کې بریالي کول، د دوی سخت سرې، زېرکې او د مشکلاتو زغم و، ځکه دوی دغه ژوند چې په صحراګانو او دښتو کې تېراوه دوی ډېر کلک کړي او د هر ډول مشکل ګاللو لپاره یې چمتو کړي وو.
اتم علت: د عربو د لاس په لاس د جګړو علت چې پر دښمن یې همېشه غلبه او بری مینده د دوی غرنې اوسېدل چې دوی یې هر ډول تکلیف زغملو ته چمتو کړي وو او هم هغه جګړه چې د جاهلیت په دوره به یې په خپلو مینځو کې درلودې، دوی دې ته چمتو کړي وو، چې دښمن سره دې لاس په لاس جګړه کې بریالي شي ډېرې جګړې چې د مسلمانانو او کفارو ترمنځ پېښې شوي او مسلمانانو خپل مقابل ډېر ژر له پښو وغورځاوه او د دوی یوه ناڅاپه حمله ده چې پر دښمن به یې کوله او د دوی مشر به ژر وواژه چې د دښمن په روح او معنویاتو به یې اغېزه وکړه او دښمن به له ماتې سره مخامخ کړ.
نهم علت: د مسلمانانو زیاتو فتوحاتو او پرمختګونو بله وجه دا وه چې دوی به له مغلوبو سره داسې ښه کول چې هغوی به یې له ځانه خوښ او ممنون کړل او هر کله به چې د دفاع او جګړې څخه دښمن عاجز شو، هغه باج او جزیه یې چې له هغوی څخه اخیستې وه بېرته به یې ورکوله له همدې کبله دغه قامونه سره له دې چې دین او مذهب یې هم یو نه و د اسلامي حکومت په ورکېدو خوښ نه وو، د شام په جګړو کې به کله چې د مسلمانانو د دښمن د فشار په نسبت ځنې سرحدي ځایونه پرېښودل، نصاراو به په لوړو اوازونو ویل:
الله جل جلاله دې تاسو بېرته په خیرسره راولي بل دا چې مخالفت نه کاوه تر دې حده که به دوی یو تن یوازې کوم تړون وکړ او یا به یې په ژبه وعده وکړه ټولو مسلمانانو به هغه وعدې او تړون ته په ښه سترګه کتل.

لسم علت: د مسلمانانو د پرمختک علت دا و چې دوی بل تل سپکه وسله کرځوله چې په همدې توګه به یې د جګړې لګښت هم ډېر لږ و، د مسلمانانو یو تن د جګړې ټول وسایل په خپله برابرول بالعکس دښمن به درنده وسله ګرځوله او د غذایي موادو له حیثه یې هم ډېر مشکلات درلودل دې ته اړ وو چې په ښو شنو ودانو ځمکو کې جګړه ونښلوي ترڅو د خوړلو لخوا مشکلاتو ونه ویني ځکه دوی عیاش او د نفس او نس تابع وو خو عربو دې شیانو ته اړه نه درلوده بلکې تر داسې ځایونو به تېرېدل چې هلته به یې نه اوبه او نه شینکي و خو د ضرورت په وخت کې هلته د دښمن له تعقیب څخه ژغورلي وي.

یوولسم علت: د مسلمانانو د ډېرو او زیاتو فتوحاتو او ښه پرمختګ علت د دوی د هدف یووالی چې هغه عبارت د اسلام له خدمت څخه یعنې د دوی ټولې قربانۍ د یو پاک مطلب (چې د اسلام خدمت دی) لپاره وي، د اسلام سردارانو او نورو سپاهیانو ظاهري جاه او جلال نه غوښت او دخپل شخصي برم په لور نه وو او د اسلام د خدمت په لاره کې له هیڅ ډول سربښندنې څخه غاړه نه غړوله چې یوه له هغوی څخه دا ده چې خالد بن ولید ﷺ د مغرول کېدو فرمان د دویم خلیفه له خوا ورسید په ډېره خوشحالۍ یې د اعلی قومندانۍ مبارکي ابوعبیده ته ورکړه او په خپله د یوه فرد پرځای د هغه لاس لاندې خدمت ته ملا وتړله همدا د فکر یووالی او سربښندنه او یو تریله جارېدل چې یوه هم شخصي ګټه په نظر کې نه درلوده ددې باعث شو چې مسلمانان سره له دې چې ډېر لږ وو وسلې یې هم نه درلودې د لوړو لوړو سوبو او فتوحاتو خاوندان او تاریخي بریالتیاوي په برخه شوي.

پای